


د امریکا په ښکیلاکګر هیواد کې تازه نظرپوښتنه ښیي، چې د امریکایانو غوڅ اکثریت افغانستان کې د خپلو عسکرو جګړه ناکامه او په فوري توګه د دې هیواد ه د امریکایي پوځیانو وتل غواړي ، د (سي این این) تلویزیون او (او آر سي) له لوري په یوه تازه نظرپوښتنه کې ویل شوي ،چې ۸۲ فیصده امریکایانو په افغانستان کې د امریکایانو له پوځي شتون سره مخالفت کړی ،چې دا د پنځه کاله پخوا په پرتله په سلو کې (۲۴) زیات دی.

سي این این وایي، د نظرپوښتنې پایلې ښیي، چې په افغانستان کې د امریکا دوولس کلن پوځي حضور د امریکا تر ټولو نامحبوب پوځي عملیات دي او اکثره امریکایان د دې غوښتونکي دي، چې امریکایي پوځیان دې د ۲۰۱۴ زکال تر دسمبر مخکې له افغانستانه وایستل شي، د (سي این این )د نظرپوښتنې مشر( کیتینګ هولنډ ) وویل:«دا نظرپوښتنه ښیي چې د افغانستان جګړه تر نورو شخړو خورا لږ ملاتړ کوونکي لري، د عراق له جګړې سره مخالفت هیڅکله تر ۲۹ فیصدو زیات شوی نه و ، د ویتنام د جګړې په مهال هم د جګړې د مخالفو امریکایانو فیصدي دومره نه وه لوړه شوې، په هماغه وخت له ګلپ په مرکو کې په هرو لسو کسانو کې شپږو د جګړې مخالفت کړی و.»همدا سې یوې بلې ادارې(یو ایس ټوډې پیو ریسرچ سنټر)هم د جنورې د ۱۵او ۲۰ نیټې ترمنځ یوه نظرپوښتنه کړې ،چې زیاتو امریکایانو ورته ویلي چې دافغانستان جګړه افغانستان کې ناکامه ده ......له وروستیو نظرپوښتنو دا سې ښکاري ،چې د افغانستان له جګړې سره د امریکایانو ملاتړ مخ په کمېدو دی ،ځکه چې اکثره یې فکر کوي ،چې دا جګړه ناکامه ده،نو باید نور ورته دپای ټکی کښېښودل شي اوژر تر ژره دې امریکایي پوځیان ددې هیواده راوایستل شي.

بلې خو اته امریکایي حکومت د کابل ګواډګیانو ته پرله پسې ګوتڅنډنې کوي ، چې که د امنیت په نوم د افغانستان سره د امریکایانو د تلپاتې میشتیدنې تړون لاسلیک نشي ، نو ګوندې خدای جل جلاله مکړه افغانستان باندې به کومه توره بلا نازل شي او تاسو ټول به وخورې ، د دوئ په آند چې ددې تنکۍ ولسواکۍ ځواني به خاورې ایرې شي ، او دا دومره لاسته راوړنې به په سیند لاهو شي ، د ناتو یهودي المذهب سرمنشي (راسموسن) هم یوې خبرې غونډه کې ویلې چې که کرزی دا د(وطن پلورنې وثیقه ) سند لاسلیک نکړي ، نو ګوندې حامد کرزی له سره او ر سره لوبې کوي ! !

اوس پوښتنه داده ! ! چې امریکایان ولې افغانستان کې د خپلې فزیکي او پوځي بقا پر سرد کابل له واکمنو سره چنې وهي ، پداسې حال کې چې خپل زیات ولس یې ددې پوځي شتون پر خلاف د بغاوت غږ جګوي ، خو دوئ خپل غوږونه پرې کاڼه کړي او ددې هیواد څخه د وتلو هوډ نه ښيي ؟

ښایې ځواب یې ډیر ښکاره او هغه د دوئ استعماري ارادي او ښکیلاکي عزایم وي ، امریکایان او ملګرې هیوادونه یې ، چې زمونږ خپلواک هیواد ته له دومره مدرنو وسلو ، ځغروالو شوبلو ، جنګي الوتکو او سمندري پوځ سره راتلل ، همدا اوږده ښکیلاکي اراده او د خپل پوځ د تلپاتې شتون اهداف ورسره لا له پیله مله وه ، خو د ولسونو د اغفال لپاره یې ډول ډول بهانې او حیلې جوړې کړې وي ، اوس چې د حقیقت میدان راغی ، نو د دوئ عزایم یو په بل پسې بربنډیږي او دوئ یې نور د پټولو ځواک نلري ، که دا تړون و شي که و نشي ، د مجاهدینو څخه په غیربل کوم داسې مادي یا او سپنیز ځواک نشته ، چې غربیا ن له هیواده په زور وباسي ، همدا اوس دادی د دوئ د پوځ طویل المدت چمتوالی له چا پټ ندی ، او هرڅوک پوهیږي ، چې امریکان څه غواړي ! !؟

داسې ډیر کرزیان به لاړ او راشي ، خو ښکیلاکګر به د لیزري وسلو په مټ پاتې وي ، خو هغه تاریخي خیانت چې د شمال ائتلاف ، کرزي ډوله عناصرو او په مجموع کې ، ټولو بې ضمیره وطن پلورو ټوپکوالو وکړ ، هغه په (۲۰۰۱ز) کال کې د اسلامي امارت پر خلاف د اشغالګرو دعوتول او د خپلواک اسلامي هیواد په اشغال کې د دوئ سره عملي مرسته وه ، چې پیړۍ پیړۍ وروسته نسلونه به د داسې ګوډاګیانو د قبرونو شناختې په تیږو وولې او دا جرم به یې معاف نکړي .

خو تر کومه ځایه چې د افغان مسلمان ولس او اسلامي امارت پورې اړه لري ، هغه د خپل هیواد د آزادۍ او اسلامي نظام هغه زړه راکښوونکې ازانګه ده ، چې د خپلو مجاهدو اسلافو څخه په وراثت کې ورته پاتې او تر پلې کولو پورې به یې دوسله وال جهاد هوډ اونه ستړې کیدونکې مبارزه په څپو وي ، کوم زورګیرمادي ځواک به یې څپې خاموشه نکړای شي او انشاءالله تعالی دوینو په نذرانو به د حریت پالې جهادي مقاومت بهیر ګړندې ساتي او تر بشپړې فتحې پورې به د مجاهدینو د قافلو د قیادت جرس وي !




در سال ۲۰۰۱ م که امریکای جنایت پیشه ، علیه مظلومیت ملت رنجدیده افغان ، به بهانه واهی مبارزه علیه تروریزم ، جنگی تمام عیار براه انداخت و هیچ فرصتی برای تحقیقِ حقیقت ، ملاحظه ننمود و از عجله و شتاب کار گرفت ؛ آن زمان دولتمردان وقت امریکا ، هرگز فکر نمی کردند که سرانجام ، روزی به عاقبت سیاه آن حرکت نامیمون شان گرفتار خواهند شد ، آنها ، افغانستان را فیصله شده می پنداشتند و اکثریتِ ملت شریف و غیّور افغان را بر تعدادی وطنفروش و افغان نما ، قیاس می کردند که جز سمعنا و اطعنا کاری نخواهند داشت ، ملت افغان را محتاج ، تصور می نمودند

که با اندکی متاعِ پُر زرق و برق خارجی ها ذلیل می شوند و تمام خواسته های نامشروع و سُلطه گرانه آنها را با جان و دل می پذیرند ، ملت مومن افغان را زندانی و محبوس می پنداشتند که با تسلط بر خاک آن دیار ، این ملت رنجدیده را از قید بندها و رنج ها آزاد و رها می سازند ؛ خلاصه بطور قطع ، امریکا بدون شناخت کافی از ابعاد کلی زندگی و خصوصیات منحصر به فرد این قوم آزاده ، در حمله نظامی بالای سرزمین و ملت افغان ، بسیار از عجله و شتاب کار گرفت و با همگام ساختن دیگر قدرت های (ظاهری) جهان ، و نیز با همکاری و همیاری همه جانبه چند تن اجیران وطنفروش ، افغانستان را به اشغال خود در آوردند و به مشوره غلامان حلقه به گوش خود ، دست به هرجنایت و خیانتی که دل شان خواست زدند ؛ خانه های بسیاری از افغانهای مظلوم را بمباردمان کردند ، انسانهای زیادی ، قربانی حمله های وحشیانه و ددمنشانه سربازان و عساکر جنایتکار اشغالگران شدند ؛ دلهای بسیاری از وطنداران مظلوم ، داغدار گردیده و کوه های غم و اندوه ، پُشت سرهم بالای شانه های نحیف و ضعیف ملت رنجدیدهء افغان ، انباشته شدند و...

اما ، پس از تهاجم غرب به سر کردگی امریکا در افغانستان ، اوضاع کُلّا بر خلاف جهت و منظور دشمنان رقم خورد و کاملا برعکس تصور آنها ، همه نیرنگ ها و حیله گری های غرب مکار و امریکای حیله گر ، نقش برآب شده و افغانستان بر خلاف خواسته و آرزوی دشمنان ، به مکانی جز آنچه که آنها ، تصور می کردند تبدیل گردید ، رویای خوش آمریکا در افغانستان به کابوس وحشتناک مبدل شد ، بیشتر از آنچه که گمان کرده بودند جنگ افغانستان ادامه یافت ؛ و رفته رفته در خلال این جنگ ، بجای افغانستان این

امریکا بود که به طرف زوال و نابودی، سقوط و افول، حرکت کرد و فیصله و نابود شد؛ و جز وطنفروشان فرصت بین، قاطبهء ملت افغان، شریف، غیور، وطندوست، آرمانی، سلحشور و مجاهد به چَشم آمدند که هر گز لحظه ای حضور اشغالگرانه غرب متجاوز را تحمل کرده نمی توانستند، و گاهی بخاطر متاع پُرغرض کفر مکار، کُرنش ننموده و گردن کج نکردند و مردانه وار به همه دالرهای هدفمند دشمنان، باغیرت مثال زدنی پُشت کرده و دنیای پُر زرق و برق خارجی ها را ناچیز و دون، دانسته و به آزادی و استقلال کشور خود بالیده و افتخار می کردند؛ اینجا بود که آمریکا دانست چه غلط بزرگ، و اشتباه جُبران ناپذیری در مورد افغانستان مرتکب شده و خود را آماده هر نوع شکست و ذلّت نمود؛ آمریکا، اگر بر مظلوم ترین های سرزمین افغانستان، ظالمانه ترین کارهای تاریخی را روا داشت؛ ولی این یک حقیقت روشن است که فرزندان واقعی وطن، و مجاهدین راستین راه عزت و آزادی نیز با حمله های تاکتیکی، منظم، دقیق و به موقع، بالای مواضع خاص دشمنان، در جای جای وطن، چنان ضرباتی کوبنده، بر پیکر فرسوده طاغوت اشغالگر وارد کردند که جبران آنها، برای دشمنان از ناممکنات روزگار گردیده و آنقدر جنازه و نعش، (ازعساکر وحشی صفت) روی دست اشغالگران گذاشتند که سران استکبار خود مستقیم یا غیر مستقیم، به شکست و ذلت فاحش خویش اعتراف نمودند...

و اما امروز که یوم فرار و خروج با ذلت دشمنان، فرارسیده و بیش از یک دهه اشغالگری، امریکا و قوای مشترک بین المللی به هیچ امید شاخص نرسیده و مصارف جانی و مالی که هزینه جنگ افغانستان شده را بالاتر از تحقق اهداف شان می بینند؛ از راه تواضع، صبوری، تعلّل و تاخّر کار می گیرند و دنبال فرصت مناسب و دلیل قناعت بخش و قابل پذیرش همه، می گردند؛ آمریکا، همانطور که برای تهاجم، بهانه ی ساختگی درست نمود؛ در صدد آنست که برای بیرون رفت از بحران افغانستان نیز بهانه داشته باشد و –به اصطلاح –آبرومندانه فرار کند؛ اما غافل از اینکه، در تعریف کلمه "فرار" آبرو، هیچ مفهومی ندارد و هرقسمش چه با دلیل و یا بی دلیل، بی آبرویی کامل است؛ اینکه تبلیغات وسیع، تحت مذاکرات و امضای توافق امنیتی با حکومت دست نشانده براه انداخته جزو همین پروسه فرار آبرومندانه است، اینکه اوباما، در تعداد مشخص عساکر باقیمانده پس از سال ۲۰۱۴ م در افغانستان، تا این اندازه با مشاورین نظامی و افسران اردوی خود تشکیل جلسه داده و چانه زنی می کند، اینکه مدام می گویند از یک کاندید خاص در انتخابات نام نهاد پیش رو حمایت نمی کنند، اینکه از طریق رسانه ها و مطبوعات جهان به دروغگویی علیه مجاهدین می پردازند و از صُلح پنهانی بین مجاهدین و حکومت اجیر، حرف به میان می آورند، اینکه اسناد حقیقت شکست را از برخی مقامات نظامی خود در افغانستان نادیده می گیرند و دقیقا از واقعیت ها طفره می رود، اینکه مقامات پنتاگون تحت فشار سناتورها از بودجه و مصرف جنگی در افغانستان همواره مورد استیضاح و بازپرسی قرار می گیرند و ... همه این موارد، بخشی از حیله های امریکا، جهت دفع شکست در جنگ افغانستان است که خوشبختانه، هیچ یک از موارد فوق تا حال جواب نداده و هر گز در آینده نیز جواب نخواهد داد. ان شاءالله!

و نیز این تعلل در فرار، پس از شتاب در تهاجم، خود دلیلی واضح مبنی بر شکست است که آمریکا نمی خواهد اشتباه ۲۰۰۱م را مرتکب شود؛ در حالیکه تعلل در ۲۰۱۴ م خود یک اشتباه بزرگ است که امریکا در آینده با مضرات جبران ناپذیر آن مواجه خواهد شد؛ ولی آن وقت دیگر دیر است؛ مثل آنکه امروز برای جبران اشتباهات دیروز آمریکایی ها بسیار دیر شده است!!!

به امید رسوایی های بیش از پیش امریکا و دشمنان اسلام در افغانستان مظلوم

# دمقدساتو سپکاوی ته توجیه کیدونکی جرم

میوند سادات

امریکایې یرغلګرو پر افغانستان د تیري له پیل څخه تر اوسه پورې په بې شمېره توګه د اسلامي شعایرو او مقدسه اماکنو سپکاوی دلته ترسره کړی دی. نیواکګرو د تېر وخت په دوام تېره اوونۍ یو ځل بیا د مسلمانانو معنویات ژوبل کړل، په جسماني توګه یې شکنجه کړل، تهدید یې کړل ،بندیان یې کړل، کورونه په وحشیانه ډول ورتلاشي کړل.

د نوي میلادي کال د لومړۍ میاشتې په ۲مه نیټه اشغالګرو ځواکونو د داخلي عسکرو په ملتیا د میدان وردګ ولایت د سید اباد ولسوالۍ د شینزدرې پر سیرک کلي د چاپې پرمهال لومړۍ د خلکو کورونه تلاشي کړي بیا د کلي جومات ته تللي د مسجد او قران عظیم الشان بې عزتي یې کړې .

عیني شاهدانو رسینو ته ویلي چې یرغلګرو او کورنیو عسکرو د کورنود پلټنې پرمهال سپین ږیري، زنانه او ماشومان له خپلو کورونو څخه وتلو ته اړ ایستلي او دژمي په سړه هوا کې یې تر سهاره ترشنه اسمان لاندې په داسې حال کې شپه تېره کړې چې د امریکایې وحشي عسکرو او داخلي چاکرانو د ټوپکو شپیلیو او لیزرونو ته یې د مظلومیت سترګې نیولي وې. نورو عسکرو بیا په دغه شپه د پلټنې په پلمه د جومات صحن تخریب کړی، د مسجد په الماریو کې د قران کریم او سورت یس ګڼې نسخې یې پر مځکه غورځولي او پاڼې پاڼې کړي ، همدارازد سیمه ییزو خلکو له خولې ویل شوي ،سهار چې دوی جومات ته ورغلل وحشي عسکرو په یاد شوي جومات کې چې د حاجي هزار ګل په نوم مشهور دی ګندګي هم کړې او مسجد یې بیخي په بل مخ اړولی ؤ.

د اشغالګرو او داخلي اجیرانو پر یاد شوي وحشت او جنایت نه ارګمشر(کرزي) د تمساح اوښکې توی کړې او نه هم په اصطلاح ازادو او ناپېیلو رسنیو همدې ستر جنایت ته پام ورکتنه وکړه ، د همدې لوی وحشت سره مطبوعاتو داسې سوړ چلند وکړ فقط لکه یوه داسې وړه او عادي پیښه چې رامنځته شوې وي چې په یادولو نه ارزي.

همدا پيښنه که دکابل اداري چلونکو ،ناپېيلي ميډيا ؟ !اوغرب زده ګانوته پام وړ وي يانه ،خو افغان ولس ته دومره لويه خو اشينونکې پيښنه ده چې دعاملينو دمحاکمې پرته يې په بل هيڅ ډول دتوجيه او قناعت وړنه ده، خلګو دا شغالګرو او کورنيو عسکرو ددغه کرغيړن عمل پرضد په مظاهرولاس پوري کړ او دکندهار- کابل لويه لاريې داعتراض او احتجاج په توګه تړلې وه چې ديادي شوي پيښې عاملينو ته دې سزا ورکول شي.

په ډيرتاسف سره چې دکابل اداري چارواکو، يرغلګرو، اوبې شمېره مدني اوبشري ټولنو اوبنسټونو دهمدې پيښې غندنه څه چې پرې دخواشينۍ څرګند لوزحمت ! ! هم ونه ايست ! هو !دې ته وايي بشري حقوق ،دبيان ازادي اوډيموکراسي !.

ښه شـو داخبره اوس لمرغونـدي روښانه شـوه چـې څـوک داشـغالګروپه شـتون کـې دخپلومقدساتواومنافعودساتني خوبونه ويني په فوق العاده ډول غوليدلي وو اودي، ښايې او س دوی هم په هوش شوي وي چې لويديځ په تېره امريکاچې دبيان ازادۍ ،بشري حقونواو.....ناري سورې وهي يوازې او يوازې دخپل ځان اوځاني ګټولپاره ، نه ده ټول انسانيت لپاره ،ځکه نړيوالوولیدل چې ليبيايې دبشري حقونو ،بيان ازادۍ اوډيموکراسۍ څخه دسرغړوني په جرم په کروزتوغنديو اوکلسترېمونولوليه کړه،معمرقـذافي يـې پـه همـدې ګنـاه وواژه، خوپـه يمـن اومصرکي يې ددوی دهمدې يادوشوو ارزښتونو ناقضينو(علي عبدالله صالح اوسيسي والو )ته مالي ،اخلاقي،پوځي اوسياسي مرستي پيل کړې،دلته بيا ټول هغه ارزښتونه ! ! چې نه عملي کيدل يې دمخالفينودرانسکورلولپاره مجوزګڼل څه خبره نه ده چې ددوی دګوډاګيانوله لوري ترپښولاندي شي.

څومره لويه تېروتنه ده چې دهمدې متعصبينو ، جابرانو اوظالمانو څخه دسولي ، عدل اوخير خـواهۍ تمـه کيـږي، څـومره دافسـوس ځـای دی چـې دهمـدې نړيوالوجنايتکاروڅخـه دامـن تمنااوغوښتنه کيږي او په همدې خيال پلونوورسره دامنيتي اوستراتيژيک تړون په نوم دغلامۍ سندونه منل کيږي.

يرغلګروکـه دلتـه هـرډول جنايتونـه اوخرمسـتۍ وکـړې ،پـه مقابـل کـي يـې د افغـان ولـس مجاهدوبچيانوهم ددوی لوی اوواړه بيسونه ورنسکورکړل ،لوړرتبه اوعـادي عسـکريې دهلاکت کنـدي تـه ورټېـل وهـل ،يعنـي الله تعـالی دمجاهدينو پـه لاس يرغلګروتـه داسـي سـخت اونـه هيريدونکي عذابونه ورکړل چې تل به يې دعبرت سرمشق وي.




په دې نیږدې ورځو کې دګاونډي هیواد پاکستان دکویټې په ښارکې دوه تنه زبده ، جیداومجاهدعلمای کرام ،شیخ الحدیث مولوي عبدالسلام اوبل شیخ القران مولاناعبدالله ذاکري نورالله مرقدهما ، یوپه بل پسې د اسلام دکرغیړنو دښمنانو له لوري دبرید ښکار وګرځیدل او په ډېرقساوت یې شهیدان کړل.

ددغودوسترو علمي اوروحاني شخصیتونه لویې ځانګړتیاوي او کارنامې داوې چې دژوند ټوله برخه یې دالله تعالی ددین په اشاعت ،درس ، تدریس اودا سلامي شعایروپه ساتنه اوپالنه مصرف کړه ، افغان ولس اواسلامي امت یې داسلام ددښمنانو له فریبونو، دسایسواوحربوڅخه په هروخت کې باخبره ساته اوترټولوښکاره اوتل پاتې ویاړیې داوو چې دروسي اوامریکایي دواړو یرغلونو په مقابل کې دافغان مظلوم ولس ترڅنګ لکه غرونه ودریدل ، دجهاداومبارزي سنګرونه یې تاوده وساتل اودیرغلګرو ژامې یې دموثرو جهادي فتواوو په زریعه ماتي اوکړې وګرځولي .

ښکاري داسلام اوافغانیت ددښمنانو په سترګو کې دیادودیني مشایخو همدغه جهادي اوافغاني کارنامې دسترګو اغزي ګرځیدلي واودهغوی په پلید وزړونو کې یې خنجرونه وهلي

و ، چې بـاالاخره يــې دخپلو اجيرانو پـه مرسـته دروحانيـت ، تقـوا اوجهاد دغود نګو منارونو د نړيولو فجيع عمل ته لاس اوږد کړ.

داسلام دلاري ددغو ځلنده مشالونو ددیانت او امانت داری کچه بائيد لدې نه معلومه کړل شي چي دشهادت له نیتي څخه يوه ورځ وړاندې مرحوم شيخ صاحب عبدالله ذاکري په خپل وصيت کې ځامنوتـه ويلي و چې پـه ټول عمر کې ترې صرف يولمونځ قضاشوی ، هغـه هم دجهاد په مهال او دالله په فضل يې دبيت المال يوه روپی اويوه پيسـه هم پـه غبن اوغصب نده ترلاسه کړې ، نوکه چيرې هغه شهيد شو په قاتلينو پسي يې مه ګرځی ،ځکه د هغه قاتلين لکه لمر څرګند اوښکاره دي چې امریکايان اودهغوی اجرتي مزدوران دي ! !

دمرحوم ذاکري صاحب پورته قيمتي کرښې ددې خبري لوی حجت دی چې داستکبار په لاس دشهيدوشوو مشايخو يواځينی جرم ! دهغوی ديني اوملي غروراوپه اسلامي ټولنه کې يې اغيزمن رول اومحوري کرداردی.

يعني شيخ ذاکري اوشيخ عبد السلام رحمهم الله ، نه له چاسره شخصي اوذاتي خصومت درلود ، نه يې دقدرت سيالي اوکشمکش هدف وو ، نه يې دماديـاتو اوشهرت غوښتنه لرلـه اونه دکوم بهرني هيواد داستخباراتو غړي ول ، بلکې صرف دخارجي يرغل مخالفت يې کاوه ، داسلامي شعايرو او اسلامي تهذيب دفاع يې په ځغرده کوله اومسلمان ولس ته يې دوحدت اوخيرخواهي ذهنيت ورباښه .

دشيخ عبد السلام رحمه الله پـه ولس کې دمحبوبيت اندازه تـردې حده وه چې پـه جنازه کې يې ديولکوپه شاوخواکې افغانانواوانصاروعامومسلمانانوبرخه اخيستې وه ، پـه ولس کې دشيخ صاحب ددومره ژوري ميني علت دانـه وچې مرحوم کـوم لوی سياسي منصب درلود ، فوځي غښتلی قومندان واويايې لويه مالي شتمنی اوارګاه بارګاه درلوده ،بلکې ۳۴ کالـه يــې درسـول الله صـلی الله عليــه وسـلم دمبارکواحـاديثو کتابونــه اودوري زرګونوطالبانوتــه ولوسـتلې ، دولـس دخيرخـواهي اوروغوجوړوپرفيضـه سـرچينه وه، د کفاراوددوی داجيرانوپه وړاندې يې دبرحق جهاد برالا تائيد اوملاتړ کاوه.

مادمرحوم شيخ صاحب ددیانت او امانتداري له عبرت نه ډکه کيسه هم اوريدلي ، چې کله دتيراسلامي امارت پـه مهال پـه کابل کې دفاروقيـه دارالعلوم مشهوري مدرسي تـه داستاد په صفت بلل شوی و کله چې بيرتـه کورتـه روانيده نودامارت دهغه وخت دمعارف وزيرصـاحب ورتــه ۲۵ زره کلـداري دخرچـي لپـاره ورکـړي ترڅـويې پـه تـګ اوراتـګ

اونوروامورومصرف کړي ، ویل کیږي چې دامارت له سقوط ورسته کله چې مرحوم شیخ صاحب دامارت دمعارف په هغه وزیرسترګي ولګیدې نوترټولومهمه خبره یې داوه ورته چې ( زه خوبیابیرته کابل ته درنغلم تاچې کومه خرچه راکړې وه هغه راسره پاتې ده اوساتلي مې ده اوسخت ورسره تکلیف یم چې څه پرې وکړم ؟ ) وزیرصاحب ورته ویلي وچې ته خپله عالم اوزمونږ داستادپه ځای یې شرعا چې څنګه مناسب درته بریښي هغسې یې کړه؛ شیخ صاحب ورته وویل چې ته یې نه راځخه تسلیموي ، نومجاهدینوته به یې ورکړم چې دجهادپه لارکې یې مصرف کړي.

دافغانې مشایخواومتبرکوهستیوورستې شهادتونه په داګه کوي چې دامریکااواجیررژیم نورې ټولې حربې اوزورازمایې شنډې اودرې ورې وګرځیدې ، دسنګرله اتلانوسره یې دمقابلې ځواک له تاریخي شکست سره لاس اوګریوان شو ، سیاسې چالونواوداسلامي امارت په مستحکم صف کې ددرزاچولوټول نیرنګونه په ابولاهوکړل شول، نواوس یې دهغوسپین روبواستادانواوعلمای کرامو په شهیدولوپسې راخیستي چې له ولس سره شپه ورځ ناسته ولاړه لري اوپنځه وخته دالله دربارته دعبادت اوسجدې لګولولپاره جوماتونوته ځي اودصلیب نوکران ورته دجوماتونولارې څارې اودکلیسادخوشالولولپاره یې دجوماتونوپه غولي اولاروکوڅوکې شهیدانوي او غلیمانه ججوري اوپرې تشوي .

خوزمونږدافغاني مشایخواوروحانیونو دښمنان اوقاتلین ، بائیدپه زور اوزیرپوه وي چې دکومو خلکو شهادت اوله منځه وړلوته دوی لاس اوږدکړی ، دهغوی تعلق اوربط تریوې کورنې اومحدودقشرپورې نه وو ، بلکې دهیواداومسلمان ولس نخبګان اومرشدان یادیږي، شاته یې لوی ملت ،مجاهدې پرګنې اوداسلام په لکونوسربکفه سپاهیان پاته دي ، هغوی به دخپلوشهیدومشایخوله نقش قدم اوټاکلي مسیرڅخه یوه لویشت هم کاږه اومخته ورسته نشي اوپه دې خبره دې هم سرونه خلاص کړي چې سرسپارلي مجاهدین به له هغولوروا وخلکوسره چې دافغانستان دمشایخوپه وینوبې لاسونه سره اوککړدي دهریوه څاڅکي په بدل کې به ورسره پوره پوره حساب کوي اودروند قیمت اوبیه به ګالي ، انشاالله تعالی

# کرزیه! ټینګ شه!

سید ولي حامد

کرزیه امریکایان خو دې راوستل، که څه هم چې ته وایې چې: امریکایانو کرزی راوست! کرزي امریکایان نه دي راوستلي! په دې معنی چې امریکایان نورو راوستل، خو امریکایانو بیا کرزی راوست، په هر صورت هر څه چې وي، که تا راوستلي وي او که یې ته راوستلی وې، اوس یې د راوستلو پر سر د خبرو وخت نه، بلکې د ایستلو پر سر خبرې دي، که امریکایان تا راوستلي او که نورو، په دې کې شک نشته چې ډېر ستر او لوی تاریخي جنایت او خیانت یې کړی، خو لکه څومره یې چې راوستل ستر تاریخي جنایت دی، همدومره یې ایستل ستر او لوی تاریخي ویاړ دی، د حضرت حمزه رضی الله عنه د شهادت په اړه خو به دې اورېدلي وي، چې د وحشي په نامه یو کس چې د جبیر بن مطعم غلام و، او د بدر په غزا کې یې اکا وژل شوی و، مطعم بن جبیر خپل غلام وحشي ته وویل چې که دې حمزه رضی الله عنه زما د اکا په بدل کې په شهادت ورسولو آزادوم دې، همغه و چې وحشي حضرت حمزه رضی الله عنه ددې لپاره چې خپل ځان آزاد کړي په شهادت ورسولو.

کله چې حضرت وحشي رضی الله عنه اسلام راوړ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ترې وپوښتل چې ته وحشي یې؟ ده ویل هو، وایي زما اکا حمزه تا په شهادت ورسولو؟ ده ویل: څه مو چې اورېدلي دغسې شوي!!، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته ویل چې کیسه را ته وکړه، حضرت حمزه رضی الله عنه دې څه ډول په شهادت ورسولو؟ حضرت وحشي رضی الله عنه ټوله کیسه ورته وکړه! رسول الله صلی الله علیه وسلم چې د خپل اکا چې رضایي ورور یې هم کېدو په شهادت ډېر زیات ځورېدلی و، وحشي رضی الله عنه ته یې وویل چې مخ دې را نه لیرې کړه، او نور ما ته په مخه مه راځه! رسول الله صلی الله علیه وسلم ځکه داسې ورته وویل چې د ده په لیدو به یې خپل اکا ور یادېدو، وحشي رضی الله عنه هم دا خبره ومنله، هر ځای به چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و، ده به کوشش کولو چې ور سره مخامخ نه شي، خو دا یې په زړه کې یو لوی داغ پاتې شو.

کله چې د یمامې غزا شوه، وحشي فکر وکړ چې راشه (مسلیمه کذاب) ووژنه، کېدای شي په دې سره له یوې خوا ستا خپل زړه یخ او ډاډه شي، او له بلې خوا به د نورو مسلمانانو زړونه هم یخ شي، او هغه داغ چې د حضرت حمزه رضی الله عنه د شهادت له وجې د ټولو مسلمانانو په زړونو لګېدلی هغه به لیرې شي، په دې معنی چې که مې د الله جل جلاله زمری (حضرت حمزه رضی الله عنه) په شهادت ورساوه دا دی د اسلام ستر دښمن مسلیمه الکذاب مې هم ووژلو! یعنې په دې سره به هغه جبیره شي، او همداسې یې وکړل، مسیلمه الکذاب یې هم وواژه.

اوس هم کرزیه که تا او ملګرو دې افغان ولس په امریکایانو وواژه! د شپې او ورځې یې کورونه تلاشي کړل، ښځې او ماشومان یې په سپیو ورته وداړل، جنسي تیري پرې وشول، زندانونو ته واچول شول، په شهیدانو یې میتازې وکړې، د شهیدانو د بدن غړي یې له ځان سره د یادګار په توګه وساتل! کلي، کورونه، مدرسې او جوماتونه، فصلونه او باغونه یې بمبار کړل، پردیو هېوادونو ته یې هجرت کولو ته مجبور کړل، فحشا او عریاني یې پکې رواج کړه، د افغان ولس د نجونو او پېغلو عفتونه یې ولوټل! په بیسونو او دفترونو کې افغان نجونې د وحشي امریکایانو د شهوت رانی ښکار شوې، یوازې امریکایانو نه، بلکې تر تا راتاو افغان لنډغرو او وحشیانو هم په پراخه کچه د افغان ولس دلوټو عفتونه ولوټل! په وړو څلور کلنو او پنځه کلنو نجونو جنسي تیرې وشول! د سپین ږیرو سپکاوی وشو، امریکایانو جنسي تیرې پرې وکړل! د افغان ولس نجونې هره ورځ په مختلفو نومونو د فحاشیو او بدکاریو ښکار کېږي، په تلویزیونو کې نڅېږي! افغاني غیرت او شهامت یې تر پښو لاندې شو! او دا ټول هم ته او هم دې ملګري د سر په سترګو ګورئ! بلکې دهمدې لپاره کار کوئ!

تاسو په حقیقت کې نه یوازې دا چې امریکایان د افغان خاورې ته راوستل، بلکې د افغان ولس، غیرت، شهامت، عفت، ننګ او ناموس مو د دوی په پښو کې ور وغورځول! ډېر سخت د افسوس ځای دی چې ای کاش داسې نه وای شوي!

دا چې وشول، او اوس په تا کې یو څه غیرت را پیدا شوی، غواړې چې له دې وروسته دا ډول ناکردې تر سره نه شي، خیر یوسې! الله دې وکړي چې په خپلو خبرو کې او دریځ کې رېښتونی وې، داسې نه چې د ځینو ځانګړو موخو لپاره دا کار کوې! که ته په رښتیا په خپل دریځ تر پایه ودرېږې، او د راتلونکې لپاره ولس او هېواد له دغه تاریخي شرم او ناورین څخه وژغورې یقینا چې خپل تېر جنایتونه او خیانتونه به دې یو څه مینځلي وي.

ته باید پوه شي چې ستا دغه اوسنی دریځ یو درست دریځ دی، که دې تر پایه وساته نو ولس در سره ولاړ دی، آن طالبانو هم ستا د دریځ ستاینه وکړه، ګوره تا د امریکایانو په واسطه په طالبانو او ولس څه ونه

کړل؟ ته خپله ښه پوهېږې چې څه دې ونه کړل؟ خو نن چې دې دا ډول اسلامي او ملي دریغ غوره کړ، طالبانو هم شین څراغ درکړ! چې که خارجیان پاتې شول مونږ به جګړې ته ادامه ورکوو، او که ووتل نو جګړه به بس کړو! ته باید هوښیار و اوسې، ته وایې چې زه په خپل هېواد کې سوله غواړم، آرامي غواړم، د هېواد او ولس پرمختګ غواړم، او د همدې لپاره له امریکایانو سره تړون لاسلیکوم، او وایې چې خدا وراستي اګه غیرت ما قبول کنه! خو مجبور استیم! پس کله چې ستا دغه غوښتنه او آرمان د خارجیانو په وتلو تر سره کېدای شي آیا دا ستا لپاره یو تاریخي او طلایي فرصت نه دی؟ ته ولس او خاوره ځکه په امریکایانو خرڅوې چې سوله راشي، او په دې شرمېږې هم چې دا کار کوې، خو کله چې دغه سوله د خارجیانو له موجودیته پرته، او پر ته له دې چې خاوره او ولس پرې خرڅ کړې راتلای شي! آیا دا په رښتیا یو تاریخي او طلایي چانس نه دی؟ او که ته بیا هم تړون لاسلیکوې نو په حقیقت کې ته درواغزن یې، خپل ضمیر ته درواغ وایې، خپل ولس ته درواغ وایې، له خپلې خاورې او هېواد سره خیانت کوې!

ته باید پوه شې چې که افغانان په خپلو کې سره جوړ شي، هیڅ خارجي نشي کولی چې د دوی تر منځ اوربل کړي، او که افغانان په خپلو کې سره جوړ نه شي، نه امریکا او نه کوم بل څوک ددې توان لري چې هېواد ته سوله او آرامي راولي.

اوس خبره تر تا پورې تړاو لري، که دې دا تاریخي کار وکړ، هم به دې خپله توره ماضي سپینه کړې وي، او هم به د راتلونکو نسلونو لپاره ویاړ او او افتخار جوړ شې! لکه تا چې خپله له آزادۍ رادیو سره په مرکه کې ویل چې زه غواړم راتلونکي نسلونه مې د خارجیانو لپاره زمری او دخپلو خلکو لپاره پسه وبولي! که په رښتیا همداسې غواړې نو بیا ټینګ شه! تړون لاسلیک نه کړې! که هر څو فشارونه در باندې راشي، تر ټولو سخترین فشار به د مرګ ګواښ وي، که دې ووژني او که ژوندی پاتې شې په دواړو حالتونو کې دې مېره ده! که ژوندی وې ټول به دیو اتل په سترګه درته ګوري، او که یې ووژلې او نیت دې د الله جل جلاله لپاره و، د دنیوي اتلولۍ تر څنګ به دې دآخرت لوی ویاړ او افتخار هم ګټلی وي! لنډه دا چې ستا په دواړو کې ګټه ده، که ژوندی وې د عزت ژوند به کوې، یوازې ته نه بلکې ټول ولس او هېواد، او که دې ووژنې نیکمرغه مرګ به دې نصیب شي! تر دې لوی او لوړ بخت! کرزیه الله جل جلاله ډېر لوی تاریخي او طلایي فرصت په لاس درکړی، خو که ته سمه استفاده ورڅخه وکړې!

**والي تخار محترم مولوي باز محمد (حميدي) در مصاحبه اختصاصي با ماهنامه مورچل :**

مصاحبه کننده: شاهد

# ولایت تخار دارای (۱۷) ولسوالی اند، که دوازده (۱۲) ولسوالی این ولایت فعلاً تحت تصرف مجاهدین امارت اسلامی میباشند، وتشکیلات اداری ما درآنجا فعال میباشند

**جغرافیه وتاریخ ولایت تخار**

ولایت تَخار یکی از ۳۴ ولایت افغانستان است. این ولایت در شمال افغانستان واقع شده و مرکز آن شهر تالقان است.

تخار ازجملهٔ ولایات زراعتی و سرسبزبوده، درحدود ۴۰۰ کیلومتری کابل واقع است و از جملهٔ ولایات درجه دوم محسوب میشود.

به طرف شمال شرق تخار، ولایت بدخشان، به طرف غرب آن ولایت کندز، به طرف جنوب آن ولایت بغلان و به طرف شمال آن تاجکستان موقعیت دارد. مساحت تخار بیش از ۱۲۴ هزار کیلومتر تخمین زده شده است.

**ولسوالی ها:**

تخار بر اساس توزیع واحد های اداری (۱۲) ولسوالی دارد.

شهرتالقان مرکزتخاراست وولسوالی های آن شامل ورسج، فرخار، کلفگان، خواجه غار، خواجه بهاوالدین، بهارک، هزار سمچ، دشت قلعه، ینگی قلعه، چاه آب، رستاق، بنگی، اشکمش، چال، نمک آب و درقد میباشد.

درین ولایت اقوام مختلف مانند ازبک، تاجک، پشتون و هزاره زندگی میکنند.

بیشترین ساکنین آنرا ازبکها و کمترین آنرا هزاره ها تشکیل میدهد.

**آبدات تاریخی:**

تخار یکی از ولایات تاریخی بوده و قدامت آن به زمان اسکندر مقدونی بر میگردد. جغرافیه نگاران یونانی ( استرابو ) و ( بطلیموس ) در آثار شان در تقریباً ۲۳۰۰ سال قبل از امروز از اسکندریهٔ آمودریا یا اسکندریهٔ اوکسیانا خبر داده بودند. اما تا این اواخر معلوم نبود که این شهرافسانوی اسکندر مقدونی درخاک کدام یک ار کشور های آسیا مدفون و گمنام مانده است.

سالها بود که باستانشناسان و مورخین جهان بخصوص اروپایان به جستجوی رد پای سپاهیان اسکندر در شرق برآمده بودند. تا اینکه راز بزرگی برملا شد و شهر معمایی اسکندر در شرق یا همان سکندریهٔ امودریا در ناحیه شمال شرق افغانستان(تخار) امروزی از زیرگرد قرون متمادی نمایان گردید که با کشف آن معما های زیاد تاریخی و باستانشناسی حل و پرتو جدیدی بر زوایای تاریک تاریخ میهن معمر و مدنیت پرورما – افغانستان عزیز افگنده شد.

ساحهٔ باستانی ( اسکندریهٔ آمودریا ) در قریه کوچکی که بنام آی خانم شهرت دارد واقع گردیده که در ارتباط به آن باستانشناسان مربوط نام آن شهر یونان وباختری یا آن اسکندریه آمودریا را -آی خانم- یعنی ساحهٔ باستانی آی خانم گذاشتند.

---

سوال :خواهشمندیم که از روی لطف خودرا با خوانندهگان مجله جهادي مورچل معرفی نمایید !

جواب: فلله الحمد رب السموات و رب الارض رب العلمین وله الکبیریاء فی السموات والارض وهو العزیز الحکیم والصلوة والسلام علی خاتم النبیاء والمرسلین وعلی آله واصحابه من تبعهم الی یوم الدین اما بعد. از مسؤلین مجله وزین وکفرشکن (مورچل )یک جهان سپاس گذاریم، که بما وقت دادند ،تا درمورد حالات جهادي ولایت تخار واوضاع سیاسی کشوربه خوانندهگان این مجله اظهار نظر نمایم.

نام بنده مولوی باز محمد(حمیدی) و لد صوفی لعل محمد ساکن قریه پنجری ولسوالی اشکمش ولایت تخار می باشد ، و در قریه مذکور در سالی ( ۱۳۴۷ ) هجری شمسی چشم به

دنیا باز نمودیم، تعلیم ابتدایی در قریه مذکور حاصل نمود یم، بعداً انقلاب خونین قوی سورخ شوروی در عمر ده (۱۰) سالگی صورت گرفت ،که بعد از سپری شدن دو سال از وطن عزیز به هجرت مجبور شده، در مملکت همجوار پاکستان هجرت نمودم، باقی تعلیمات خویش در مدارس مختلف پاکستان تا فراغت دوره کلان در دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک به رحمت الهی فائز گردیدیم.

سوال:از وقتی که مسؤلیت ولایت تخار بدوش شما سپرده شده، آیا می توانید احصائیه تلفات دشمن را معلومات دهید.

جواب: از وقت که وظیفه مسؤلیت ولایت تخار را به بنده سپرده شده اند، از آن وقت تا الحال عملیاتهای مبارک مجاهد امارت اسلامی در ولایت تخار خیلی دقیق و بجا بودند، عملیات امسال ولایت تخار تقریباً در حدود چهل (۴۰) میباشد ،که به دشمن ضربه سنگین و شدید وارد نموده اند، راپورهای دقیق که صورت گرفته تحت ذیل قرار دارند ،که بیست و هفت نفر اردوی ملی و پولیس اداره اجیر کابل و چهارده (۱۴) نفر اربکیها و هشت (۸) نفر متجاوزین اشغالگرهای امریکایی و دو (۲) نفر جاسوسان خاص امریکایها نیز به قتل رسیدند، که مجموعه شمار مقتولین به تعداد پنجاویک (۵۱) میرسند، و در میان مقتولین نیز سه قومندانان مشهور و یک وکیل شورای ولایتی عضو مهمی جنبش عبدالرشید دوستم بودند ،و تعداد چهل و پنج (۴۵) نفر از اردوی ملی و پولیس واربکیهای اداره کابل مجروح گردیدند، و ایضا در این عملیاتهای مبارک مجاهدین ولایت تخار تعداد هفت(۷) موتر رینجر تخریب شدند، و به تعداد هشت (۸) نفر اردوی ملی و پولیس اداره کابل حقائق امارت اسلامی افغانستان را درک نموده ،به صفوف مجاهدین ولایت تخار تسلیم و یک جا شدند.

سوال: در ولایت تخار قوت مجاهدین امارت اسلامی را چطور ارزیابی می کنید؟

جواب: الحمد الله والمنه ،مورال مجاهدین ولایت تخار نهایت عالی و بلند است، و در همه وقت در برابر دسیسهای دشمن و فریب های شیطانی آنها در کمین و دفاع است،امیدوارم که در آینده مورال شان بالاتر و عالی تر باشد.

سوال: در مجموع صفحات شمال خصوصا ولایت تخار که اشغالگران مرکز خود میدانند اهالی ولایت تخار به همراه مجاهدین کدام اندازه همکار است؟

جواب: الحمد الله و المنه مردم غیور و متدینی ولایات سمت شمال خصوصاً اهالی ولایت تخار به همکاری مجاهدین قهرمان امارت اسلامی خیلی متوجه اند، و میخواهند که همکاری خود را ار مجاهدین دریغ نه نمایند، لیکن ولایت تخار مرکز مخالفین امارت اسلامی است، لهذا علانیة به همکاری مجاهدین امارت اسلامی دلچسپی ندارند ،اما خفیه به معاونت مردم غیور و متدین ولایت تخار مجاهدین الحمد الله و المنه خیلی فعالیت عالی دارند، روز به روز اهالی غیور ولایت تخار از اداره دست نشانده غرب نفرت روبه افزائش است، چنانچه در وقت تجاور صلیبی و قوایی سرخ روس مردم قهرمان و غیور ولایت تخار توانستند، که اداره مزدور خلق و پرچم را سرنگون ساختن و توانستند، که ولایت خود را فتح نمودند، چنانکه تاریخ شاهد است ،و انشاء الله عنقریب است که مردم قهرمان ولایت تخار نیز اداره مزدور غرب را سرنگون سازند ،و شانه به شانه به همکاری مجاهدین استاده شوند.

سوال : در بعضی اوقات در ولایت تخار هنگامهای گوناگون به پیش می آیند، و در بعض اوقات خاموش میشوند علت شان چیست؟

جواب: مردم قهرمان و متدین ولایت تخار زمیندار، دهقان و غریبکار هستند ،لیکن در بعضی اوقات از طرف شیطانهای داخلي وخارجی جلسه های دائر میگردد ،که در آن جلسها سخنرانیهای خود مردم به طرف قومیت و سمتیت دعوت میکند، که از تاثیر سخن های آنان متاثر میشوند، و دست به تشنج میزنند، و حالات هنگامی را ایجاد می نمایند، کدام وقت که غرض و مقاصد آنها پوره شوند، حالات خودبخود بطرف اطمینان رو می دهند ،و در بعض اوقات اغراض قومندانان روبه زوال میشوند، به خاطر نجات دادن اغراض خویش مردم متدین ولایت تخار به هجوم باعث می نمایند، لیکن حالاً مردم غیور ولایت تخار به اغراض شوم آنها واقف شدند، و انشاء الله در آینده چنین حالات بوجود نه می آیند.

سوال: بعد از آمدن دیموکراسی غربی و شعار های کاذبانه شان در زندگی مردم این ولایت چطور تغیر را محسوس می نماید؟

جواب: مردم قهرمان و متدین ولایت تخار از آمدن دیموکراسی در جامعه اسلامی عموما در افغانستان و ولایت تخار خصوصا خیلی نفرت و بغض دارند ،چونکه مردم افغانستان بالخصوص اهالی ولایت تخار به قانون اسلامی و شریعت غراء محمدی صلی الله علیه و سلم محبت دارند، لهذا کدام قانون غیر اسلامی که در هر جا رائج شوند، بالخصوص در وطن مالوف شان اشداً انکار می نمایند، و مخالفت خود را به آن قانون غیر اسلامی اعلام

می نمایند ، چونکه در هر زمان و هر مکان بعضی عناصر مفسد وجود دارند ، و قانون غربیها را استقبال می نمایند ، همچنان در ولایت تخار چنین اشخاص وجود دارند ، لیکن نهایت در اقلیت است ،عموماً مردم متدین ولایت تخار به هر قانون که مخالف اسلام است و از کلتور افغانها مخالف است، اشد بغض دارند.

سوال: اگر اداره کابل به همراه امریکایها بنام امنیت توافقنامه امنیتی را امضاء نمایند ، عکس العمل اهالی ولایت تخار چطور می باشد ؟

جواب: اگر اداره کابل با حکومت امریکا توافقنامه امنیتی را امضاء کنند ، مردم متدین افغانستان وبالخصوص به مردم ولایت تخار هیچ حیثیت ندارند ، زیرا که این چنین امضاء بحیث غلامی نمودند مردم متدین افغانستان و ولایت تخار است، و این امضاء اداره کابل با امریکا د رتاریخ افغانستان چیزی جدیدی نیست، زیرا که قبل ازین ببرک کارمل با روسها ،و شاه شجاع با انگلیس ها کرده بودند ، و کدام حالات که در آن زمان ایجاد شده بود ، درین زمان نیز ایجاد میشود ، زیرا که مردم افغانستان عموماً و بالخصوص ولایت تخار غلامی انگلیس ها را به هیچ صورت قبول نخواهند کرد ، مجاهدین شانه به شانه در مقابل غربیها و اداره مزدور شان به جهاد خویش ادامه می دهند.

سوال : آیا برسیدن هوای گرم پلان های جنگی دارید ؟ اگر دارید چطور میباشد ؟

جواب: طبق معمول به رسیدن هوای گرم سال به سال پلانهای مجاهدین از نگاه تجربه جدید و زیرک اهداف مهم را در نظر گرفته اقدام مینماید ، که خسارات سنگین را به دشمن وارد گردد ، لهذا مجاهدین امارت اسلامی افغانستان از مهارتهای جنگی برخوردار اند.

سوال: اولتر مسولیت شما در ولایت تخار کارهای جهادی بودند یا حل نمودن مشکلات مردم عوام ؟

جواب: مسولیت بنده در مورد کارهای جهادی نهایت متمرکز بودند ، و نیز به مجاهدین هدایت داده بودیم، که به حل نمودن مشکلات مردم منطقه طبق فرامین امارت اسلامی افغانستان اقدام لازم نمایند.

سوال: تشکیلات اداری امارت اسلامي درولایت تخار فعال وتطبیق نموده میتوانید ؟

جواب: بلی الحمدالله ولایت تخار دارای (۱۷) ولسوالی اند ، که دوازده (۱۲) ولسوالی این ولایت فعلاً تحت تصرف مجاهدین امارت اسلامي میباشند ،وتشکیلات اداری ما

درآنجا فعال میباشند ،انشاء الله العزیزدر پنج (۵) ولسوالی دیگرهم تصمیمی داریم، که تشکیل را درآنجا هم پیاده نمایم ، ونظم را فعال سازیم ، که عموما در تمام ولسوالی ها ولایت تخار انشاء الله العزیز دست بکار شویم ،الحمد الله مجاهدین غیور این ولایت بانظر و مفکوره رسیدند ، که جهدوجهد خود را در مقابل دشمن و همکارانش استعمال نمایند ، تا اینکه کفر را سرنگون و شکست دهند.

سوال : به آهالی و اقوام ولایت تخار چه پیغام دارید؟

جواب: پیام بنده به تمام مردم متدین ولایت تخار این است ،که هر شخص وجیبه خویش را که عبارت است از تقوی ، پرهیزگاری ، تقرب الی الله و درست ساختن عقاید ، عبادات ومعاملات طبق شریعت غرای محمدی صلی الله علیه وسلم که سبب کامیابی دارین میگردد.

خلاصه بنده گی رب العزت امتثال نمودن به اوامر خداوند جل جلاله واجتناب از نواهی، مثلا نماز در آن وقت فرض میگردد ، که وقت نماز داخل شوند ، و روزه گرفتن در آن وقت فرض میگردد ،که شهر رمضان مبارک داخل شوند ، و جهاد در آن وقت فرض عین میگردد ، که کفار بر حریم مسلمانان تجاور نموده،مانند انگلیسها ، شورویها و امریکاییها ،آن روز به تمام مسلمانان واجب است ،که در مقابل امریکاییها و همکارانش مقابله نمایند ، تاکفار از خاک مقدس افغانستان محوه و نابود ، و نظام اسلامی سراسر افغانستان برپا گردد.

دیگر این که به همراه مجاهدین دست به وحدت و اتفاق زند ، از چند جمله مکاردشمن خودداری کند ، زیرا که دشمن فریب کار روبه تزلزل است ،نباید از مکر و فریب دشمن شکار شوند.

باز هم در مقابل علیه کفر و دشمن عقیده راسخ و عظیم و اراده محکم و فولادی داشته باشید . و در آخر میگویم به رسپاند الله رب العزت و رسول بپیوندید ، تا که مصداق این ایت کریمه بگردد

واعتصموا بحبل الله جمیعا ولاتفرقوا

ومن الله توفیق

والسلام

# د شرعي او غير شرعي امير ترمنځ توپير

مولوی سیلاب (عمر)

د شرعي امير او غير شرعي امير توپير د نظام په توپير پوري تړلی دی ، په نړۍ کې عامه دوه نظامونه دي چې قوانين ، تګلارې او عقائد يې يو له بل څخه بېل او ځينې يې په نهايې تضاد کې واقع دي، چې يو يې اسلامي نظام او بل يې ديموکراسي نظام دی .

اسلامي نظام د انفرادي ، اجتماعي ، عدلي حقوقي ، جزائي ، تجارتي ، تعليمي ، صحي ، او انتخابي چارو قوانين يې د شرع له څلورو اصول : کتاب الله ، سنت رسول الله ، اجماع د امت او قياس دمجتهدينو څخه سرچينه اخلي ، يا په يقيني ډول ورسره تضاد ونلري ، چې دغه اصول د اسلامي عقيدې د بنسټ په توګه هم پېژندل کيږي .

خلاصه داسي ده : چې د حق او باطل ، روا او ناروا، مقبول او مردود، ترمنځ د امتياز ميزان او مدار د لوی خدای جل جلاله سپېڅلی او روښان شريعت دی ،چې دهغه ټولي پريکړې طی شده او مقطوعي دي ،نه کومي رايي ته اړتيا لري اونه کوم نوي پيوند ته ضرورت لري . ددغه نظام د چلولو او ساتلو سرواک ته شرعي امير ، سلطان ، پاچا ، يا رئيس ويل کيږي .

د يموکراسي يو مستقل کفري نظام دی ، چې د اسلامي نظام په مقابل کې تشکيل شوی دی ، د قوانينو يوه برخه يې له عيسوي دين څخه سرچينه اخلي ، د بېلګې په توګه د ښځينه او نارينه رايه په انتخاباتو کې يو د بل مساوي ګڼل کيږي، د فاسق شخص او يو سپېڅلي انسان شاهدي يو د بل مساوي ګڼل کيږي اويوه برخه يې له يهودي دين څخه سرچينه اخلي، دبېلګې په توګه د بانکدارۍ او تجارت بنسټونه يې په سود ولاړ دي ، او يوه برخه يې په عقلي تخمينونو ولاړه ده .

خلاصه يې داسي ده : چې د حق او باطل ، روا او ناروا، مقبول او مردود، ترمنځ د امتياز ميزان او مدار د خلکو رايه ده ، ظاهرا د يموکراسي نظام دغه عنوان د ساده لوحه خلکو په نظر جالب دی ، ځکه له دوی څخه د

یو شئ په انتخاب کې پوښتنه کیږي، په حقیقت کې نهایې نا کاره او بنیاد یې بې کچې ضعیف دی، ځکه فیصله په اکثریت د رایو باندي کیږي، طبعا اکثریت خلک د امورو عواقب نشي سنجولای، نو دیموکراسي د بې سنجه خلکو په سنجش ولاړ نظام دی .

نتیجه داسي شوه، چې په دیموکراسي نظام کې د قبول یا رد حکم د مخلوق د رایي او غوښتني له مخې کیږي، او په اسلامي نظام کې د یو شئ قبول یا رد حکم د لوی خدای Ψ د شرع له مخه کیږي، نو جوته شوه چې په دیموکراسي کې د خالق د حکم په مقابل کې د مخلوق حکم ته ترجیح او اعتبار ثابت دی، په نړۍ کې د کافرانو له خوا د دیموکراسي نظام ایجاد په دغه غرض شوی دی، چې د خدای Ψ حکم له منځه یوسي او دیموکراسی ته ترویج ددې لپاره ورکول کیږي، چې اسلامي نظام په شا تېل وهل شي او ځای یې دیموکراسي ونیسي، د پورتني تشریحاتو په نظر کې نیولو سره موږ داسي ویلای شو، چې دا یموکراسي یو مستقل کفري نظام دی، د اسلامي نظام په مقابل کې وضع شوی، ددغه نظام د چلولو، ساتلو او تنفیذ او تعمیل سرواک ته غیر شرعي امیر یا رئیس جمهور ویل کیږي .

زموږ د هیواد ډېری وګړي نا لوستي دي، ځیني خلک کله داسي لفظ استعمال کړي : اسلامي دیموکراسي دا عظیمه سهوه ده، ځوک داسي نشي ویلای چې اسلامي عیسائیت یا اسلامي یهودیت، ځکه په اسلام کې یهودیت او عیسائیت نشته همدا راز په اسلام کې دیموکراسي نشته، په اسلام کې حریت شته .

شرعي امیر اطاعت د فقهاؤ له نظره

{إِذَا أَمَرَ السُّلْطَانُ... بِمَا لَيْسَ بِمَعْصِيَةٍ وَلَا مُخَالِفٌ لِلشَّرْعِ بِيَقِينٍ فَيَصِحُ الْأَمْرُ وَتَجِبُ الطَّاعَةُ لَهُ} {لِأَنَّ طَاعَةَ الْإِمَامِ فِيمَا لَيْسَ بِمَعْصِيَةٍ وَاجِبَةٌ} البحر, بَابُ الْبُغَاةَ ج (٥) صـ (١٥٢) . درالمختار جـ (۴) صـ (٢۶۴) . البدائع , البغاة جـ (٧) صـ (١۴٠) . شرح مجلة للاتاسي جـ (٥) صـ (١۶٨) . ردالمحتار البغاة , مطلب تجب طاعة الإمام جـ (٢) صـ (١٧٢) . دررالحكام جـ (۴) صـ (٥۴٩) ط بيروت .

ژباړه : سلطان چې د یو داسي کار حکم وکړي، چې په هغه کې معصیت نه وي، او په یقیني ډول د شرع سره په تضاد کې نه وي، امر یې صحیح او اتباع یې واجب ده، له دې امله چې د امام اطاعت په هغو کارو کې چې معصیت نه وي واجب دی .

یعني سلطان چې د کوم مصلحت له مخه د انتظامي امورو د انسجام لپاره د نظامي، اداري، تعلیمي، قضایي، مالي، زراعتي، وغیره امورو اړوند کوم ځانګړي قوانین وضع کړي، چې له شرع سره په تضاد کې نه وي، دهغه په اجراء او تعمیل مامورین یا رعیت مکلف کړي اتباع یې واجب ده او ترې سرغړونه ګناه او جرم دی،

د مجلة الاحكام العدلية [الْمَادَّةُ (١٨٠٠) القَاضِي وكِيلٌ مِنْ قِبَلِ السُّلْطَانِ بِإِجْرَاءِ الْمُحَاكَمَةِ وَالْحُكْمِ .] اتلس سومه (١٨٠٠) ماده د محكمو د قاضيانو اړوند حكم كړى دى چې : د محاكمې په اجراء او حكم كې قاضي د سلطان له خوا وكيل ټاكل شوى .

[الْمَادَّةُ (١٨٠١) القَضَاءُ يَتَقَيَّدُ وَيَتَخَصَّصُ بِالزَّمَانِ أَوْ الْمَكَانِ وَاسْتِثْنَاءِ بَعْضِ الْخُصُومَاتِ الخ ]

په اتلس سوه يوومه ماده كې يې وكالت شرح كړى دى (قضاء په زمانه، مكان، او استثناء د ځينې احكامو مقيده كيږي) .

له پورتنيو عباراتو څخه جوته شوه چې يوازې قاضي نه بلكې دحكومت ټول وزيران، رئيسان، آن تر ټيټې رتبه مامورينو پورې يو د بل له خوا د اميرالمؤمنين يا سلطان په اجازه د سلطان وكيلان ټاكل شوي دي، د وكالت حكم دفقهي احكامو په لړ كې مشهور او معلوم حكم دى، چې د موكل له خوا وكيل ته ټاكلى صلاحيت وسپارل شي، نو وكيل له دغه ټاكلي صلاحيت څخه دباندې د دغې قضيې اړوند هيڅ صلاحيت نه لري، كه كوم رئيس د سلطان له خوا د ورسپارل شوي صلاحيته دباندې خپل ځاني صلاحيت وكاروي، حكم يې نافذ نه دى او اتباع يې واجب نه ده, كه كوم كتونكى زيات معلومات غواړي د پورتنيو دواړو مادو مربوط بحث دي په دررالحكام شرح مجلة الاحكام كې تر ژوري مطالعې لاندې ونيسي .

نتيجه : داسې شوه چې د انتظامي، اداري، قضائي او نورو امور اړوند د امير له خوا توشيح شوي اصول او قوانين چې له شرع سره په تضاد كې نه وي، د فقهاؤ له نظره ټولي مربوطي څانګې او ادارې په هغه چوكاټ كې په اجراآتو او تعميل شرعا مكلفې دي، كه څوک ترې سرغړونه وكړي نو شرعا او قانونا مجرم دى او د تعزيري سزا مستحق دى .

د شرعي امير د اطاعت انتخاب

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً وَاسْتَعْمَلَ عَلَيْهِمْ رَجُلًا مِنْ الْأَنْصَارِ وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَسْمَعُوا لَهُ وَيُطِيعُوا فَأَغْضَبُوهُ فِي شَيْءٍ فَقَالَ اجْمَعُوا لِي حَطَبًا فَجَمَعُوا لَهُ ثُمَّ قَالَ أَوْقِدُوا نَارًا فَأَوْقَدُوا ثُمَّ قَالَ أَلَمْ يَأْمُرْكُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَسْمَعُوا لِي وَتُطِيعُوا قَالُوا بَلَى قَالَ فَادْخُلُوهَا قَالَ فَنَظَرَ بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ فَقَالُوا إِنَّمَا فَرَرْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ النَّارِ فَكَانُوا كَذَلِكَ وَسَكَنَ غَضَبُهُ وَطُفِئَتْ النَّارُ فَلَمَّا رَجَعُوا ذَكَرُوا ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ : {لَوْ دَخَلُوهَا مَا خَرَجُوا مِنْهَا إِنَّمَا الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوفِ} رواه مسلم في وجوب طاعة الامراء ،

وللفظ له برقم (۳۴۲۴ــ ۳۴۲۵) وایضا رواه البخاری فی السمع والطاعة برقم (۶۶۱۲ــ ۶۷۱۶).
وغیرهما.

ژباړه : حضرت علی کرم الله وجهه وویل : رسول الله صلی الله علیه وسلم (د مجاهدینو) یوه ډلګۍ یوځای ته ولیږله، د انصارو یو سړی یې د امیر په توګه ورټاکه، رسول صلی الله علیه وسلم دوی ته حکم وکړ چې دده خبر منئ او اطاعت یې کوئ (د سفر په جریان کې امیر) په یوشئ دوی ته سخت په غصه شو، حکم یې وکړ لرګي راغونډ کړئ، دوی راغونډ کړل، حکم یې وکړ اور بل کړئ دوی اور بل کړ، له دې وروسته یې وویل : ایا!!! تاسو ته رسول الله صلی الله علیه وسلم امر نه دی کړی، چې زما خبر به منئ او زما اطاعت به کوئ ؟ دوی په ځواب کې وویل : هو دغه حکم یې کړی دی، ده حکم ورکړ چې اور ته ورګډ شئ!! دوئ یو بل ته وکتل، ځینو وویل : موږ له اور څخه د نجات په تمه له رسول صلی الله علیه وسلم سره بیعت وکړ، اوس په کوم دلیل اور ته ور ودانګو ؟ په همدې جریان کې د اور لمبې خاموشه شوې او د ده غصه هم ارامه شوه، کله چې راستانه شول رسول صلی الله علیه وسلم ته یې کیسه وکړه [اوس پوښتنه داده چې د اطاعت اقدام غوره دی او که د مخالفت اقدام ؟] رسول صلی لله علیه وسلم وفرمایل : که چیرې دوئ اور ته داخل شوي وی، هیڅکله به ترې وتلي نه وای، بې شکه اطاعت په روا کارو کې دی.

پورتني حدیث شریف د امیر اړوند ټوله مسئله واضح کړه، د امیر اطاعت هلته واجب دی، چې حکم یې له شرع سره موافق وي، او هلته یې اطاعت حرام دی چې حکم یې په یقیني ډول د شرع په خلاف وي، ځکه د امیر امر شرعي حرام نشي جائز ولای، که ممکن وای نو رسول صلی الله علیه وسلم بیا ولي ورته ویل : که اور ته داخل شوې وای بیا به هیڅکله ترې وتلي نه وای، ځکه د خپل نفس ناروا قتلول وه، د اسلام د دفاعي او تعرضي جهاد دواړو برخو اړوند یو ډول نفعه نه پرې مرتب کېده. په هغو امورو کې چې اطاعت یې حرام وي، د شرعي امیر په توګه نه پېژندل کیږي، که په حرام او ناروا عمل باندې د امیر اطاعت څوک وکړي او په همغه کې ووژل شي، شهید نشي ګڼل کېدای، ځکه رسول صلی الله علیه وسلم وویل : که اور ته داخل شوې وای بیا به هیڅکله ترې وتلي نه وای.

نتیجه دا سي شوه که کوم امیر د داسي قوانینو لمخه یا د داسي چا له خوا وټاکل شي، چې هدف پکښې د اسلام د احکامو، دیني مقدساتو، دیني عقائدو، اسلامي عنعناتو او ارزښتونو له منځه وړل او توهینول وي، هیڅکله شرعي امیر نشي ګڼل کېدای، اطاعت یې واجب نه دی، ځکه رسول صلی الله علیه وسلم وفرمایل : {إِنَّمَا الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوفِ}، بې شکه اطاعت په روا کارو کې دی.

{فإن أمر بمعصية فلا سمع ولا طاعة}. بخاری ومسلم.

ژباړه : بې شکه په نارواکې نه منل شته او نه اطاعت شته .

د حضرت علي رضی الله له پورتني روايت څخه د دريو مسئلو احکام جوت شول :

(۱)ـ د امير حکم عمل ته جواز نشي ور کولای ، بلکي د جواز حکم به له فقهي احکامو څخه تر لاسه کوي .

(۲) ـ په ناروا عمل باندي د امير د حکم اطاعت واجب نه دی ، بلکي په نارواکې اطاعت گناه او حرام دی .

(۳) ـ کوم څوک چې تر ناروا قومندې لاندي يا په کوم معصيت کې ووژل شي شهيد نشي گڼل کېدای .

(۴) ـ امير اطاعت په روا کاروکې واجب دی .

له واک څخه معزول شوي شخص ته نبوي ρ توصيې

عَنِ ابنِ عبَّاسٍ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ : مَن رَأَى مِن أَميرِه شَيئًا يَكرَهُهُ، فَليَصبِر ، فَإِنَّهُ لَيسَ أَحَدٌ يُفَارِقُ الجَمَاعَةَ شِبرًا ، فَيَمُوتُ إِلا مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً هَذَا حَدِيثٌ مُتَّفَقٌ عَلَى صِحَّتِه .

ژباړه : حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وويل : رسول الله صلی الله عليه وفرمايل : که څوک له خپل امير څخه داسې کار چې دده نه خوښېده ووينې نو صبر دي پرې وکړي ، ځکه څوک چې د مسلمانانو له ډلي څخه د يوې لوېشتي په واټن جلاشي ، که په همغه جلاوالي کې مړ شي ، نو هغه د جاهليت په مړينه مړ دی .

د پورتني حديث مطلب دادی چې د ناخوښه کار په ليدو سره که صبر ونکړي نو شيطان يې بېلتون پالی ته هڅوي خدای مکړه که د شيطان اتباع وکړي ځان له خدای پالي ډلي جلاکړي بيرته پښېمان نشي ، توبه ونه باسي او دبېلتون په دريځ اصرار وکړي د صالحانو په يو موټې ډله کې اختلاف او بې اتفاقي وغورځوي نو دوژخ ته به ولاړشي .

ځکه اصل اهداف ، نظريه ، عقيده او ددغه بريا لپاره پوخ دريځ دی ، نه خپل امتيازات او دځان تسلط او په قدرت کې پاتې کيدل ، مقصد اهدافو ته د رسيدو لپاره مشترکه مبارزه او مجاهده ده ، د بې اتفاقی او تشتت په صورت کې اهداف لمنځه ځي نو همدا لامل دی چې اختلاف مذموم او دوژخ ته د تللو سبب دی .

قَالَ حُذَيفَةُ بنُ اليَمَانِ : قَالَ صلی الله عليه وسلم : « تَسمَعُ وَتُطِيعُ لِلأَمِيرِ وَإِن ضُرِبَ ظَهرُكَ وَأُخِذَ مَالُكَ فَاسمَع وَأَطِع » . رواه مسلم ، باب الامر بلزوم الجماعة ، برقم (۴۸۹۱) . ورواه الحاكم فی المستدرک برقم (۸۵۳۳ـ ۸۳۳۲) وسنن الكبری للبيهقی برقم (۱۷۰۶۰) والجامع بين الصحيحين برقم (۳۹۸) .

ژباړه : حضرت حذیفه ابن الیمان رضی الله عنه وویل : رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : د امیر خبره ومنه او اطاعت یې وکړه ، که څه هم ته ووهل شې او ستا مال در څخه واخیستل شي ، خبره یې اوره اطاعت یې کوه .

له پورتنیو دواړو حدیثو څخه جوته شوه چې دمسلمانانو له ډلې سره اجتماعي ژوند د دنیوي او اخروي نیکمرغي او بریا زېری دی ، ترې بېلېدل او جلاوالی د دنیوي او اخروي بدمرغي او تباهي پیلامه ده .

نبوي توصیه : نوکه امیر د کوم مصلحت دپاره رئیس ، والي ، ولسوال ، محاذ مشر ، ډلګی مشر له خپلې رتبې اومنصب څخه معزول کړي یا آن وسله او وسائل ټول ترې واخلي ، معزول کس ته رسول الله صلی الله علیه وسلم داسي توصیه وفرمایله [ که څوک له خپل امیر څخه کومه ناخواله ویني نو صبر دي پرې وکړي ][ که څه هم ته ووهل شې او ستا مال در څخه واخیستل شي ، خبره یې اوره اطاعت یې کوه ][ ځکه څوک چې د مسلمانانو له ډلې څخه د یوې لوېشتې په واټن جلاشي ، بیا په همغه جلاوالي کې مړ شي ، نو هغه د جاهلیت په مړینه مړ دی ] .

نبوي توصیه : ځینې مجاهدین د ناپوهي او سادګي له امله چې د دیني زدکړې سویه یې ټیټه وي ، کله کله داسي اقدام وکړي چې شرعاد ګټې په ځای له لوی زیان سره مخ شي ، د مثال په ډول کله چې له رتبې څخه معزول شي ، یا وسله ترې واخیستل شي ، نودا ډېر مایوس او ناهیلی شي ، شیطان یې تحریک کړي د مسلمانانو له ډلې سره پرېکون وکړي یا د دنیوي تمي او مفاداتو په خاطر څنګ بدل کړي آن د کافرانو په لیکه کې داخل شي ، داسي کس ته رسول الله صلی الله علیه وسلم داسي توصیه وفرمایله [ څوک چې د مسلمانانو له ډلې څخه د یوې لوېشتې په واټن جلاشي ، که په همغه جلاوالي کې مړ شي ، نو هغه د جاهلیت په مړینه مړ دی ]

له نیکانو څخه په بېلتون کې جنت نشي موندل کیدای

په انفرادي توګه الله جل جلاله جنت ته څوک نه پرېږدي تر څو د نیکانو په ډله کې شامل نشي ، الله جل جلاله په دې اړوند داسي فرمایلي دي :

{ فَادْخُلِي فِي عِبَادِي (۲۹) وَادْخُلِي جَنَّتِي (۳۰) } سورة الفجر .

ژباړه : زما د صالحو بندګانو په ډله کې شامل شه ، بیا له هغو سره یوځای زما جنت ته ننوځه .

له پورتني آیت څخه واضحه شوه ، چې یوځل به نیکانو په ډله کې شاملیږي بیا جنت ته تللای شي ، نو ترې څرګنده شوه که څوک په دنیوي ژوند کې د مسلمانانو له اجتماع څخه ووزي یا د نیکانو له ډلې څخه مره ور شي پرېکون ورسره وکړي نو په یوازي والي کې جنت نشي پیدا کولای ، ځکه رسول صلی الله علیه وسلم

په صراحت سره وفرمایل : [ څوک چې د مسلمانانو له ډلي څخه د یوې لوېشتي په واټن جلاشي ، که په همغه جلاوالي کې مړ شي ، نو هغه د جاهلیت په مړینه مړ دی ] .

د جاهلیت په مرګ مړدی واضح مطلب یي همدغه دی چې دنیکانو له ډلي څخه د بېلتون په حال کې مړشي له جنت څخه محروم دی .

قال الله تعالی : { إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّى يُغَيِّرُوا مَا بِأَنْفُسِهِمْ وَإِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِقَوْمٍ سُوءًا فَلَا مَرَدَّ لَهُ وَمَا لَهُمْ مِنْ دُونِهِ مِنْ وَالٍ (١١) } الرعد .

ژباړه : بې شکه الله چې د لوړېني له مخه کوم قوم ته نعمتونه ورکړي تغیر نه ورکوي تر څو چې دوی ( د خدای له حکم څخه ) سر غړونه ونکړي ، الله چې کومي ډلي ته د سزا ور کولو اراده وکړي ، هیڅوک یي بیا مخنیوی نشي کولای ، له خدای څخه پرته کوم بل دوست د دوی نشته چې خیر ورته راجلب او له شر څخه یي وژغوري .

له سواد اعظم څخه جلا شوی کس شیطان اختطاف کړی دی

د مسلمانانو اجتماعي قوت او خپل منځي اتفاق یو له هغو نعمتونو څخه دی چې په پورتني آیت کې د نعمت ذکر وشو او د زرګونو نورو نعمتونو سرچینه ده ، د مسلمانانو په لومړیو ضرورتونو کې د لوی خدای جل جلاله له خوا د هغه نصرت دی رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې د الله نصرت د مسلمانانو له اجتماع او اتفاق سره مل دی :

عَنْ أُسَامَةَ بنِ شَرِيكٍ ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : يَدُ اللَّهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ ، فَإِذَا شَذَّ الشَّاذُّ مِنْهُمُ اخْتَطَفَهُ الشَّيْطَانُ كَمَا يَخْتَطِفُ الذِّئْبُ الشَّاةَ مِنَ الْغَنَمِ . رواه المعجم الكبير للطبراني برقم (٤٩١) . وفي رواية (وَإِنَّ الشَّيْطَانَ مَعَ مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ" .) وفي رواية (وَالشَّيْطَانُ مَعَ مَنْ خَالَفَ الْجَمَاعَةَ يَرْكُضُ") وفي رواية (فمن شذ عن يد الله لن يضر الله شذوذه ») وفي رواية (اتبعوا السواد الأعظم يد الله على الجماعة من شذ شذ في النار) . حديث ابن عمر : أخرجه الحكيم (٤٢٢/١) ، والحاكم (١٩٩/١ ، رقم ٣٩١) .

حديث ابن عباس : أخرجه الحاكم (٢٠٢/١ ، رقم ٣٩٨) .

ژباړه : حضرت اسامه ابن شریک رضی الله عنه وویل : رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : د الله نصرت له ټولني سره مل دی ، که څوک ترې بېل شو هغه کس شیطان اختطاف کړیدی لکه څه راز چې لیوه له رمې څخه جلا شوی پسه اختطاف کوي .

په نورو روایاتو کې د حدیث دغه برخه په بېل بېل لفظونو روایت شوی دی چې لفظونه یې پورته ذکر دي او ژباړه یې داسې ده : له عامې ډلې څخه (د جلاشوې کس شیطان ملګری دی) (له اجتماع څخه مخالف کس شیطان هڅوي) (څوک چې د الله له نصرت څخه جلاشي ، بېلېدل یې الله ته هیڅ ضرر نشي رسولای) د مسلمانانو له (لویې ډلې سره یوځای شئ د الله نصرت له جماعت سره مل دی ، څوک چې ترې بېل شي نو دوژخ ته به ولاړ شي).

عَنْ عَرْفَجَةَ بْنِ شُرَيْحٍ الْأَشْجَعِيِّ قَالَ : رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَخْطُبُ النَّاسَ فَقَالَ إِنَّهُ سَيَكُونُ بَعْدِي هَنَاتٌ وَهَنَاتٌ فَمَنْ رَأَيْتُمُوهُ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ أَوْ يُرِيدُ يُفَرِّقُ أَمْرَ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَائِنًا مَنْ كَانَ فَاقْتُلُوهُ فَإِنَّ يَدَ اللَّهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ مَعَ مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ يَرْكُضُ. رواه سنن النسائي بشرح السيوطي وحاشية السندي جـ (۷) صـ (۱۰۶) رقم الحديث (۴۰۳۲) . وايضا رواه مسلم برقم (۳۴۴۲) ومسند احمد برقم (۱۸۲۳۰) . الهنات : الشرور والفساد ، والشدائد والأمور العظام.

ژباړه : حضرت عرفجه ابن شريح اشجعي رضی الله عنه وويل : نبي صلی الله عليه وسلم مي په منبر باندې د خطبې ويلو په حال کې وليده چې ويې فرمايل : له ما څخه وروسته به فتنې او فسادونه راشي ، که تاسو څوک وليد چې له جماعت څخه جلا کيده ، او يا يې د محمد صلی الله عليه وسلم امت ته د تيت او پرک کيدو اراده کړې وه ، هر راز چې وه ويې وژنئ ، بې شکه د الله نصرت د اجتماع مل دی ، د جلا شوې کس سره شيطان ملګری دی هغه يې هڅوي .

پورتنيو احاديثو ته په کتو سره کوم مسلمان چې په خدای جل جلاله او دهغه د رسول صلی الله عليه وسلم په خبرو عقيده لري او په دې فکر وي ، چې په خپل ژوند کې الله Ψ راضی کړي ، نو د صالحو مسلمانانو له عامي ټولني دې ځان نه بېلوي ، کوچنيو ګيلو ، او بې ارزښته نفسي خواهشاتو ، شخصي امتيازاتو ته دې د دومره اهميت په سترګه نه ګوري چې له اجتماع څخه ځان جلا کړي ، ژوند يې په معصيت کې شي ، دنيوي او اخروي تباهيو ته ځان ور ټېل وهي .

ومن الله التوفيق وافوض امری الی الله .

نور بيا..........................................

ذبیح الله مجاهد

# څو شېبې له خپل ولس سره

محترم مجاهده وروره السلام علیکم !

ایا تاسې ویلای شئ چې په افغانستان کې د ننۍ ناامنۍ علتونه څه دي؟ او ولې صلح پدې هیواد کې نشي راتلای ؟ نعیم خان

ځواب: وعلیکم السلام ! وروره ډیره ښکاره مسئله ده ، ننۍ بې امنۍ خو دامریکایي اشغال له امله ده، تاسو خبر یاست چې له نن نه دولس کاله وړاندې دافغانستان مسلمانو خلکو د خپلو شهیدانو یو ممثل اسلامي حاکمیت درلود، اسلامي امارت د علماء کرامو په فیصله او د زرهاوو علماؤو په قربانۍ او شهادت سره د دې ملت لپاره، سوله راوسته ، له ډیر سخت بد حال نه یې ملت او هیواد ته نجات ورکړ ، له ډیرو ظالمانو څخه یې د مظلوم حق واخیست او هغه نامطلوبه ، شریر او ټوپکمار مخلوق چې د مختلفو تنظیمونو په چوکاټ کې ځای په ځای شوي وو او بیا یې د خپلو خلکو مالونه ، عزت او حیا هرڅ لوټل ، پاټکونه یې اچولي وو، لارې یې بندې کړې وې، د هیواد ښارونه یې د جرمونو او جنایاتو په مراکز بدل کړي وو، شخصي جنګون، کور په کور بدۍ، د پیسو په بدل کې انسان وژنه، غلا، چوراو سل رنګه جنایات یې په ورځ کې ترسره کول، زموږ د جهاد او مجاهدینو رنګ یې بد کړ ، زموږ د شهیدانو ارواوې یې ناراحته کړې، زموږ افتخارات یې په اوبو لاهو کړل، د هلکانو سره یې ودونه وکړل، د انسانانونه یې سپي جوړ کړل او بیا یې نور پرې ودارل، دخلکو ناموسونه یې په ښکاره او بربنډه بې عزته کړل، عفیفو ښځو یې له وجهې ځانونه د

مکر رویانو له ځوم منزل نه را وغورځول، د انسانانو په سر کې یې په ژوندوني میخونه ټک وهل، د خلکو ښځې یې لوڅې او بربنډې زندانونو او تاخانوته واچولي، رقص مورده یې اجرا کړ او داسي نور جنایات......

د هیواد بادرکه علماوو، طالبانو، مخلصو مسلمانانو، ریښتونو مجاهدینو، دشهیدانو وارثانو او نیکو خلکو یې په وړاندې قیام وکړ او په الله تعالی باندې په محض توکل سره یې په ډېره لنډه موده کې د ټولو شریرو عناصرو کمپله د هیواد له ډیرې برخې ټوله کړه او داسې مثالي امن او آرام یې راووست چې د افغانستان په تاریخ کې د هیڅ ناآرامۍ او اړدوړ پسې هم چا نه وو راوستی.

کله چې امریکا په افغانستان کې د اسلامي نظام ژوندۍ نمونه ولیده او په دې هم پوه شول چې د نړۍ مظلوم ولسونه او مسلمانان به ترې تقلید وکړي او هرڅوک به په خپل ملک کې د همداسې اسلامي نظام په هڅه کې شي او ورسره به ټولې سیکولرستۍ هیلې خصوصا د امریکا ناروا ګټې او د ملتونو د زبیښلو لړۍ به پای ومومۍ، نو یې په افغانستان وار مخ کې کړ او د ځمکې په مخ یوائځنی سوچه اسلامي نظام یې له خنډونه سره مخ او هیواد یې ورته اشغال کړ.

افغان مسلمان او میړني ولس هم چې د اسلامي نظام لپاره یې خورا ډیرې قربانۍ په دوو لسیزو کې ورکړې وې، همداراز یې د خپل شرعي مسئولیت د رفع لپاره بیا په سپیڅلي جهاد لاس پورې کړ، چې طبعا ناامنۍ ورسره ټول هیواد ته وغځیده، په هرځای کې په یرغلګرو بریدونه پیل شول، له غلامانو او لاسپوڅو سره یې چې په پخوانیو ټولو ناخوالو کې مخامخ دخیل وو هم جګړه پیل شوه او تر ننه پورې دوام لري، زموږ په عقیده، جهاد ځانته سپیڅلي او لوړ مرام لري، چې د هغه مرام او هدف لپاره د جهاد ټولې ناخوالې، خرابۍ، درپه درۍ، هجرتونه، زحمتونه او تکالیف برداشت کیږي؛ نو زموږ جهاد هم د خپل آرمان د تحقق لار څاري، ترڅو به دوام لري چې ټول اشغالګر هیوادونه له هیواده وشړل شي، مجرمینو او دکفارو اجنټانو ته سزا ورکړل شي او بیرته اسلامي حاکمیت چې نیږدې د دوو ملیونو شهیدانو آرمان ترې جوړ شوي په هیواد کې پلي او عملي کړل شي، هغه مهال به ان شاءالله بیرته هیوادته امن راځي، سوکالۍ به راځي او افغان مسلمان ملت به د سکون او آرام په فضا کې آبرومندانه ژوند ته مخه کوي، د اشغال له هر اړخیزې خاتمې مخکې په هیواد کې د امن طمع کول بې ځایه دي، له الله تعالی نه غواړو چې نور ډیر ژر زموږ د کړیدلي ولس کړاونه ختم کړي، دښمنان مو خجالت او مات کړي او د هغو ټولو شهیدانو د وینو او قربانیو په برکت زموږ هیواد ته اسلامي حاکمیت راولي چې د الله په لاره کې یې خپل ټول خواږه ترخه، مور پلار، ښځه او اولادونه، ژوند او راحت پرینښودل او په سرو اورونو ننوتل او د کفارو سره یې ډغرې ووهلې او بیا شهیدان شول، تقبلهم الله.

*******

منته

مجاهده وروره سلامونه او احترامونه مې قبول کړه! لوی الله جل جلاله دې دکفر او صلیب په مقابل کې همداسې غر ولره. بله خبره داده چې زموږ ډیری مجاهدین وروڼه دانټرنټ څخه استفاده کوي، خو که سالمه او مبارزه استفاده ترې وکړي دا به ډیره ښه وي. سوال مې دادی چې ایاتاسې داسې کوم پلان لرئ چې مجاهدینو ته وښيي چې باید څرنګه له انټرنټه کار واخلي؟ او په فیسبوک کې ډیری خلک دمجاهدینو په نامه آیدانې (IDs)لري.

خوداسې خبرې، عکسونه او مقالې پورته کوي چې د مجاهدینو له شان سره نه ښايي که مهرباني وکړي د دوي د کنټرول په هلکه معلومات راکړئ؟ مننه حافظ عبدالله پنجوايي ،تلوکان، پیروزو کلی

ځواب : ستاسو سوال ډیر قیمتي و ، مامو پوښتنه د چارو له مسئولینو سره شریکه کړه ، هغوئ هې په اړه وویل چې موږ د مختلفو لارو نه هڅه کوو ، چې ټول مجاهدین د نوي تکنالوژۍ نه په سالمه استفاده تربیه شي ، تر ډیره مو ملګري او مخلصین روزلي هم دي چې د انټرنټ او نورو معاصرو وسایلونه د هیواد او اسلامي ارزښتونو نه د دفاع په لاره کې کار واخلي او سالمه استفاده ځینې وکړي، خو یوڅه دي چې د فیسبوک او ټیوټر دایره دومره پراخه او سورورده ده ،چې سرې هرڅه وکړي بیا هم نشې پسې رسیدلی، ځکه تاسو په انټر نټ کې دا مخلصین او ګڼون کونکي ګورئ چې د نړۍ له مختلفو هیوادونو څخه د فیسبوک او ټویټر نه استفاده کوي، څوک په پوهنتونونو کې دي ، څوک په شخصي تجارت او کار بوخت دي، څوک د نورو ستونزو له امله مسافرت ته اړ شوي او له بهرنیو هیوادونو نه فیسبوک استعمالوي او د مجاهدینو له داعیې او خپل هیواد د آزادۍ له هدفه دفاع کوي، نو په دا او سنیو سختو شرائطو کې چې موږ د هیواد په هیڅ لوی ښار کې چې انټرنټ او نورو وسائلو ته لاس رسی په کې آسانه وي برالا فعالیت نشو کولای، دفتر نشو خلاصولی، اداره نشو پاللی نو په دا ډول حالاتو کې اوس هم چې صرف له آنلائن طریقې نه ملګري په نظم او نسق کې راولو، له جهادي صف سره یې ملګري کوو دا هم ډیر کار ده، خو په راتلونکې کې ستاسو ارزښتمنو مشوروته چې د پوښتنو په ضمن کې مو راکړي دي هم متوجه یو، الله تعالی دې وکړي چې شرائط او ظرفیتونه را سره مرسته وکړي . آمین یارب العلمین

# دموړچل دارالافتاء

مفتي ابوماريه

دتعزیر په اړه دیوي استفتاء تفصیلي ځواب :

الاستفتاء :محترم مفتي صاحب ! دالاندي پوښتنو ته که تفصیلي ځواب راکړئ ضرورت موهم ده ،او في الحاله ورته اړیو : پوښتني دادي :

۱= یومجرم تعزیرا قتل کیدلای شي ؟

۲= اودسیاسة اوتعزیر فرق شته ؟ مثلا : موږ داوایو چې ددې مجرم قتل سیاسة روادی ؛ یایې امیر سیاسة قتل کولای شي ؟

۳= همداراز دغه قتل تعزیر یوازې امیر کولی شي او که یې افراد هم کولی شي ؟

۴= همداراز دتعزیر دنورو اقسامو په اړه که موږ ته معلومات راکړئ چې په تعزیر کې کومې کومې جزاوې داخلې دي مهرباني به مووي . المستفتی مولوي عبدالله .

الجواب حامدا ومصليا وبعد : دذکر شویو پوښتنوله جملې څخه دلمړۍ پوښتنې ځواب دادی : چې مسلمان حاکم یاامیر ؛ مجرم ته دسزا ورکړ تعزیر ورکولی شې خو چې دمجرم دجرم اوحالاتو سره مناسب تعزیر وي ، اوتعزیر په پنځه قسمه دی :

تعزیر بالقتل . یعنې دمجرم قتل کول .

تعزیر بالجلد . یعنې په دُرّو [ چې دوهلو یوه آله ده ] یاپه ورته آله سره دمجرم وهل ،

تعزیر بالحبس . یعنې دمجرم لپاره قیداوحبس چې له موده یې له جزاء سره مناسب ټاکله کیږي .

تعزیر بالنفی عن الوطن . یعنې له وطن څخه معینې مودې لپاره تبعید کول .

تعزیر بالمال . یعنې په پیسوجریمه کول .

البته :داحنافو په نزد دقتل تعزیر هغه مهال ور کول کیدلای شي چې جنایت په متکرر ډول وشي ، اوبل داچې دهغه جنایت په جنس کې سزا په قتل سره مشروع وي ، دمثال په ډول احنافو فقهاو لیکلې دي : چې که یوتن مکرر لواطت کړی وي ، بیایې امیر یاقاضي تعزیرا قتل کولی شې ، ځکه دلواطت په سزاو کې قتل راغلی

دی . همداراز که یوتن په متکرر ډول یوڅوک په مثقل ادرانه اشئ وژلی وا چې قتل یې شبه عمد ګڼل کیږي اوقصاص نه په کې راځي البته دیة په کې شته انو په جنس قتل کې یې سزااقتل شته لکه په عمد کې نو ځکه امیر دغه سړی تعزیرا قتل کولی شي .

او که دغه وړاندیني دوه قیدونه نه وي نوبیایې په جرم تعزیرا نه شي قتل کولی .

وأَجَازَ أَبُو حَنِيفَةَ التَّعْزِيرَ بِالْقَتْلِ فِيمَا تَكَرَّرَ مِنَ الْجَرَائِمِ، إِذَا كَانَ جِنْسُهُ يُوجِبُ الْقَتْل، كَمَا يُقْتَل مَنْ تَكَرَّرَ مِنْهُ اللِّوَاطُ أَوِ الْقَتْل بِالْمُثَقَّل .أحكام القرآن للجصاص ١ / ٦١، وابن عابدين ٣ / ١٨٤ – ١٨٥، والقرطبي ٦ / ١٥١ – ١٥٢ والموسوعة ١٢\ ٢٦٤

اوداستفتاء ددوهمې برخې ځواب دادی : چې تعزیرا قتل ته سیاسة قتل هم ویل کیږي : دسیاسة اوتعزیرا قتل فرق نشته : لکه دشامي ددې عباراتو څخه چې معلومیږي :

ويحملون ما جاء عن النبي (ص) وأصحابه من القتل في مثل هذه الجرائم على أنه رأى المصلحة في ذلك ويسمونه القتل سياسة .

و كان حاصله أن له أن يعزر بالقتل في الجرائم التي يعظم بالتكرار وشرع القتل في جنسها، ولهذا أفتى أكثرهم بقتل من أكثر من سب النبي (ص) من أهل الذمة وإن أسلم بعد أخذه، وقالوا يقتل سياسة اه...

ومن ذلک ما سيذكره المصنف من أن للامام قتل السارق سياسة: أي إن تكرر منه.

وسيأتي أيضا قبيل كتاب الجهاد من تكرر الخنق منه في المصر قتل به سياسة لسعية بالفساد، و كل من كان كذلک يدفع شره القتل. الموسوعة الفقهية

حاشية ردالمحتار) ٤ج /ص ٢٣٠

داستفتاء ددریمې برخې ځواب دادی: چې تعزیر دفسق دمباشرة په حالت کې دهرچاوظیفه ده، یعني هرمسلمان بل مجرم ته دفسق په حالت کې تعزیر ور کولای شي ، اودفسق دفعل څخه وروسته له حاکم ،زوج اخاونددخپلې میرمنې په حق کې ااووالدا پلار دخپل اولاد په حق کې اڅخه پر ته بل څوک دتعزیر حق نه لري .

اوداهم باید وپیژنو چې تعزیر بالقتل یوائې امام پوري تعلق لري ، البته دزناء حالت کې زوج هم په څوقیودو سره قتل دزاني یادمزنیې هم کولی شي .

كمافي الشامي ٤\٧٩ قلت : ومقتضى التعليل بالأمر أن ذلک غير خاص بالإمام، فقد مر أن لكل مسلم إقامة التعزير حال مباشرة المعصية؛ لأنه مأمور بإزالة المنكر إلا أن يفرق بأنه يمكنه الرفع إلى الإمام فلم تتعين الإقامة عليه، بخلاف الإمام تأمل

وايضافيه ١\ ٤٠٧ قال في البحر : وهو يفيد أن لكل مسلم التعزير بالضرب فإنه لم يقيده بالقاضي الخ بحث عورة الفخذ.

وفي الدر المختار والشامي ٤\٦٥ (ويقيمه كل مسلم حال مباشرة المعصية) قنية (و) أما (بعده) ف (ليس ذلک لغير الحاکم) والزوج والمولى كما سيجيء.

وفي الشامي ٤\ ٦٣ باب التعزير : وزاد بعض المتأخرين أن الحد مختص بالإمام والتعزير يفعله الزوج والمولى و كل من رأى أحدا يباشر المعصية،

اوداستفتاء دڅلورمي برخې ځواب : تعزير په پنځه قسمه دی لکه وړاندي چې يې بيان وشو ،مګر په دغه اقسامو کې يوقسم تعزير بالمال دی ، او تعزير بالمال بيا په لاندي برخوويشل شوی دی ،

١= حبس المال عن صاحبه . [دڅه وخت لپاره دمجرم څخه دهغه دمال يوه معلومه برخه راګرځول اوبيابير ته ور کول]

٢= اتلاف المال . [دمجرم دمال اتلاف]

اودغه اتلاف بيا په څوړوله سره کيدلی شي :

- بالاحراق [دمال سوزول]
- بالتمزيق [ څيرل]
- بالاراقة [تويول]
- بالتخريب [تخريبول]
- بالكسر [ماتول]
- بالتصدق [خيراتول]

وغيرها : اوداسې نور .........

٣= التغير .

٤= التمليک

دتعزير بالمال په دي اقسامو کې امام ابويوسف رح يواځې دلمړي قسم قائل دی . يعني :دڅه مودي لپاره دمال حبس سره چې بيابه يې بير ته مالک ته ور کوي ].

اودطر فينو [امام ابوحنيفه اوامام محمد رحمهما الله تعالى ] په نزد دتعزير بالمال اقسام مشروع نه دي .

البته : دعلامه ابن تیمیه، ابن قیم ، اوزمونږ دمذهب ځینو متاخرینوعلماؤ د تعزیر بالمال ددوهم قسم اتلاف المال تحریق ،تخریب اوځیني نور صور تونه هم جائز ګڼلي دي .

کمافي نصاب الاحتساب : ۲۶۴: والاصل في احراق آلات السیات قوله تعالی :{ وانظر الی الهک الذي ظلت علیه عاکفا لنحرقنه ثم للنسفنه .الآیة .فکان احراقه سنة موسی علیه السلام فیجوز لنا ایضا لان ماکان مشروعا في الامم الماضیة فهومشروع لنا الاان ثبت نسخه ولم یثبت الخ

همدارازپه الدر المختار اور دالمحتار ۳\۱۹۸ کې لیکلي : عن عمر رضی الله تعالی عنه انه احرق بیت الخمار وعن الصفار الزاهدي الامر بتخریب دار الفاسق الخ

ومثله في الهندیة ۵\۳۵۳

اوپه منهاج السنن ۲\۹۵ کې ددې حدیث لاندي : د تعزیر باهلاک المال دجواز قول هم ذکر کړی دی . قال النبي صلی الله علیه وسلم لقدهممت ان آمر فتیتي أن یجمعوا حزم الحطب ثم آمر بالصلوة فتقام ثم احرق علی اقوام .... فیه حجة علی جواز التعزیر باهلاک المال بخلافه باخذالمال فانه منسوخ الخ .

د کافر ستاینه

الاستفتاء : په نني عصر کې که یو کافر مړ شي نوډیر خلک یې ستاینې کوي ، تر دې چې مسلمانان یې هم ستاینه کوي ، نوپوښتنه دا ده چې آیا مسلمان ته د کافر ستاینه روا ده او کنه ؟ المستفتي ملااحمد

الجواب حامدا ومصلیا وبعد : هو دحربي یعنې یرغلګر کافر څخه پر ته دبل کافر ستاینه دهغه دځینو ښو اخلاقو یاصفاتو له امله رواده ، خو داپه دې معنی نه چې ګوندې دغه کافر مقبول عندالله دی ، ځکه دقبولیت عندالله لپاره ایمان ضروري دی ، بلکې له دې امله دهغه مدح رواده چې اصلا ښه اخلاق اوصفات دستایني وړ شیزونه دي ، که څه هم داپه یوه بې ایمانه شخص کې موجود وي .

في احکام القرآن للتهانوي رح ۲\۲۷ تحت قوله تعالی : ومنهم من ان تأمنه بدینار لایؤده الیک ............وفي الآیة جواز مدح الکافر بمافیه من خلق حسن ، لانه تعالی مدح اهل الامانة من اهل الکتاب وذم الخائنین منهم ، ولیس مدحهم من حیث القبول عندالله فانه لاقبول بدون الایمان ؛بل من حیث أن الخلق الحسنة حسن في نفسه ولوفي کافر، فانه لم ینتفع به من حیث القبول عندالله فسینتفع في الدنیا بسعة المال ....... الخ

وفي المسلم ۱\ ۱۹۶ م ش :عن عائشة قلت: یا رسول الله، ابن جدعان کان في الجاهلیة یصل الرحم، ویطعم المسکین، فهل ذاک نافعه؟ قال: "لا ینفعه، إنه لم یقل یوما: رب اغفر لي خطیئتي یوم الدین




حضرت خالد بن الوليد τ په ډېره ميړانه پرله پسې فتوحات وکړل، د فتوحاتو لړۍ د عراق څخه پيل او ترشام ورسيده او په پای کې يې ديرموك په جګړه کې بری تر لاسه کړ.

کله چې د خلافت چارې حضرت عمرτ ته وسپارل شوې ,د هغه لومړی کار داو چې حضرت خالدτ د لښکر له مشرۍ څخه ګوښه کړي ,او د هغه پر ځای حضرت ابو عبيده بن الجراحτ د لښکر مشر وټاکي ،سوال دادی چې ولې حضرت خالد τوروسته لدې چې ستر بريالیتوبونه يې لاس ته راوړل له دندې ګوښه کړل شو؟

په دې اړه د هغه خلکو لخوا چې هرڅه او په تيره هغه واقعات چې د صحابو تر منځ پيښ شوې دي، په مادي معيارونو تلي ,زياتې خبرې شوې دي.

استاد عقاد د ګوښه کولو لامل بيانوي:

)ځيني خلکو د ګوښه کولو لامل دا په ګوته کړی، چې ګواکې دا د سيالانو سيالي وه، ځيني نور وايي چې حضرت خالد پرته له کومې خطا او تيروتنې څخه ګوښه کړل شو ،او ځيني بيا داسې وايي چې دا د حضرت عمر او حضرت خالد تر منځ پخوانۍ کومه ستونزه پرته وه، او لدې پرته د هغه د ګوښه کولو لپاره هيڅ کوم ښکاره لامل نه و، او له هغه څخه کومه داسې خطا صادره شوې نه وه، چې ټول مسلمانان د هغه له دغه ميړانو او پرله پسې بريالیتوبونو څخه د هغې په بدل کې محروم شي.

بيا وايي ) که څوك غواړي چې د خپلو ګمانونو نيلی په دې ډګر کې وځغلوي، کولای شي چې دا هم ومني چې حضرت عمر هغه لـه کومې خطا څخه پرته ګوښه کړ، ځکه چې حضرت عمر ددغه ستر سرلښکر حيثيت او کرامت پـه خپلـه خوندي کړی دی او وروسته لدې چې د هغه د ګوښه کولو په اړه راپورته شوې غوغـاوې غلې شوې ،خلك يې پـه دغـه پيښه کې له غړيدو څخه منع کړل او ټولو ښارونو تـه يې دا وليکل، چې هغه يې د کوم خيانت او يا بل ناوړه لامل پر اساس ندی ګوښه کړی، .بلکې ددې لپاره يې ګوښـه کـړ ,چې خلك د هغه د پرله پسې برياوو په کتنه په فتنه کې ونه لويږي(

بيايې داوفرمايل :زه وويريدم چې خلك به په ده دومره ډاډه او غره شي چې په فتنه کې به ولويږي او د بري اصلي لامل به همدی وګڼي ,لدې کبلـه مې وغوښتل چې خلك پـه دې وپوهوم چې د برياوو اصلي څښتن الله تعالی دی او هرڅه د الله تعالی لخوا کيږي.

کله چې حضرت خالد د لامل پوښتنه وکړه ،حضرت عمر رضی الله عنه ورته وفرمايـل : خلك ستا په اړه په فتنه کې وغورځيدل ,زه وويريدم چې د خلکو د ويناوو لامله په فتنه کې ونه غـورځيږې، حقيقت خو دادی چې خبره ډېره آسانه وه ,هيڅ ډول غوغـا نـه وه راپورتـه شوې ,نه د حضرت خالد لښکر کوم سرغړاوی کړی و، او نه هم حضرت خالد کومه انديښنه رامنځ ته کړې وه ,داځکه چې حضرت خالد د حضرت عمر په اړه پوره ډاډمن و، هغه پوهيده چې عمر رضی الله عنه د مسلمانانو چاروکی دی، او پر ده لازمه ده چې د هغـه خبره ومنـي او غاړه ورته کيږدي، ترڅو چې ده ته يې د ګناه اومعصيت امر نه وي کړی .بل پلوته حضرت خالد دغه ټول کارونه او اعمال يوازې د الله تعالی د رضا د لاس تـه راوړلـو پـه خـاطر سرته رسول او د هيڅ ډول منصب او مشري غوښتنه يې نه درلوده، ,که د لښکر په وروستۍ برخه

کې به و، او که په لومړي سرکې، ,دا ټول ورته یو شان وو، ,ددې خبرې هیڅ پروایې نه درلوده، چې هغه مشر دی او که د لښکر عادي غړی,! همدا د اخلاص ننښه وه او همدا د آخرت د کامیابۍ غوښتنه ده او په دې کې هیڅ شك نشته چې د حضرت خالد په زړه کې لدې پورته د بل شي غوښتنه نه وه .له همدې کبله یې خپل لښکر ته د خپل زړه حال پدې ټکو کې څرګند کړی دی ) :ماته له هغه شپې څخه چې یوه ښکلې ناوې راته په کې ډالۍ شي، داسې ناوې چې زه ورسره مینه لرم,، او یا له هغه شیبو څخه چې ماته په کې د زوی زیری راکړل شي,، ډېر غوره بریښي چې د الله تعالی په لار کې د مهاجرینو د یو لښکر سره یوه داسې سړه شپه تیره کړم ،چې سهار وختي پر دښمن یرغل وکړم ،نو تاسې جهاد مه پریږدئ(امام احمد بن حنبل په یو روایت کې د عبد الملك بن عمیر څخه ددې موضوع په اړه رانقلوي ) :حضرت عمر ابو عبیده بن الجراح د شام د لښکر مشر وټاکه، او خالد بن الولید یې ګوښه کړ ,حضرت خالد وویل :تاسې ته یې ددغه امت امین را استولی دی .ما دا خبره له رسول الله څخه د ابو عبیده په اړه اوریدلې ده، حضرت ابو عبیده وویل τ:ماله رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چې فرمایل یې ) :خالد د الله تعالی له تورو څخه یوه توره ,او د خپلې کورنۍ غوره ځوان دی)

امام طبري په خپل تاریخ کې روایت کوي) حضرت ابو عبیده τد خالد τد ګوښه کیدو مکتوب سل ورځې وروسته لدې چې ابو عبیده ته ورسید ,خالد ته وسپاره ,کله چې حضرت خالد ولوسته را روان شو او ابو عبیده ته ورغی ویې فرمایل:

الله تعالی دې تاته ښښه وکړي تاته د امیرالمؤمنین مکتوب رارسیدلی دی او ته ما نه خبروې او په ما پسې لمونځ کوې پداسې حال کې چې مشري خوستا ده؟ ابوعبیده وفرمایل :الله تعالی دې تاته هم ښښه وکړي ما غوښتل چې زما څخه وړاندې بل څوك تاته دا خبر در کړي مانه غوښتل چې تا )د ابوبکر صدیق د مړینې په خبر سره (لازیات غمجن کړم ,غوښتل مې چې حالات عادي شي بیامې اراده وه چې تا خبر کړم .زه د دنیا مشري نه غواړم او نه ددنیا لپاره کار کوم ,دا څه چې ګورې ټول له منځه تلونکي دي ,ما او تاسره ورونه یو او د الله د امر ساتنه او پلي کونه راسپارل شوې ده .دا هیڅ پروا نلري، چې دیو شخص دیني او دنیوي چارې د هغه یو مسلمان ورور ته وسپارل شي، بلکې کیدای شي چې

دغه مشر تر ټولو زيات فتنو ته ورنژدې وي ,او په خطا او تيروتنه کې پريوزي ،مګر هغه چې الله تعالى يې په خپل احسان سره وساتي ,او داسې خلك ډېر لږ دي.

کله چې د خالد ؓ او ابو عبيده ؓ په څير د اتلانو ترمنځ دغه پيښه وګوري ,زړونه ورته رپيږي ,او سترګې اوښکې بهوي دا هغه اتلان دي ،چې د اسلام دښمنان غواړي ,زمونږ په ذهنونو کې يې تت او پيکه کړي او ددوی په اړه زمونږ ډاډ او اطمينان متزلزل کړي .او په خواشينۍ سره داهم وايو چې يو شمير په نامه مسلمان ليکوالان هم د همدوی په پل روان دي په داسې حال کې چې د اسلامي تاريخ په اړه هيڅ ډول معلومات نلري ,دا هرڅه ددې لپاره کيږي ترڅو مسلمانان د خپل وياړلي تاريخ څخه وشلوي او د ځان لپاره د اقتداء او پيروي بيلګه ونه مومي.

له دې وروسته مونږ په ډاګه د اوايو چې عمر فاروق رضی الله عنه ددې لپاره حضرت خالد ؓ له دندې ګوښه کړ، چې ځينې د ضعيف ايمان لرونکي مسلمانان د هغه په دغه اتلوليو تيرنه وځي او داګمان ونکړي چې که خالد د لښکر مشر نه وي نو دغه برياليتوبونه به هم نه وي او داخبره د اسلام د سوچه عقيدې سره اړخ لګوي او حضرت عمر ؓ خورا زيات باريك بين و، هغه دا نشوه زغملای چې په دې سره دې د مسلمانانو عقيدې ته څه زيان ورسيږي له همدې کبله يې خورا په آسانۍ سره حضرت خالد ګوښه کړ له هغې وروسته هم د مسلمانانو برياليتوبونه روان و او حضرت خالد د ابو عبيده په لښکر کې د يوټولي مشر و هيڅ ډول سستي په کې پيدا نشوه او نه يې خپل احساسات او انګيزه له لاسه ورکړه او لږ وروسته به د دمشق په فتح کې د هغه دريځ وګورو.

کله چې د روميانو لښکر ماتې وخوړه هغوی د دمشق خواته ولاړل او هر قل انطاکيې خواته په شا شو، ,د روميانو لښکرې کرار کرار د اردن لورې ته وخوځيدې او تقريباً اتيا زره لښکر د اردن فحل په سيمه کې راټول شو، ,ابو عبيده حيران شو، چې اوس کوم پلوته ولاړ شي؟ د دمشق په لور وخوځيږي او هلته مرکز ونيسي او که د فحل لورې ته راوګرځي.

اميرالمؤمنين حضرت عمر ته يې دغه ستونزه وليکله او له هغه څخه يې لارښوونه وغوښته، د حضرت عمر له خوا ورته يو داسې ځواب راغی، چې ګواکې هغه دغه دريځ له ډېر نژدې څخه تعقيب کړی دی هغه ورته وليکل) په دمشق پيل وکړه، ,ځکه چې هغه د شام

کلا ده او درومي سلطنت اساسي خونه بلل کیږي ،د هغې لوري ته وخوځېږه اود فحل په سیمه کې راټول شوی لښکر په یو څو آسونو بوخت وساته، چې د هغوی مخې ته ځان ورښکاره کړي ،که چیرې الله تعالی له دمشق څخه وړاندې دغه سیمه فتحه کړه ،نو همدا خو زمونږ خوښه ده او که چیرې دمشق ترې مخکې فتحه شو ،هلته ځوك سرپرست پرېږده او ته د خپل لښکر سره د فحل خواته ولاړ شه ،د فحل د فتحه کیدو وروسته ته او خالد τیو ځای د حمص لوري ته وخوځېږئ ، عمر و بن العاص او شرحبیل بن حسنه د اردن او فلسطین په سیمو کې پرېږدئ.

په رښتیا چې حضرت عمر او د هغه د شوری غړو د جګړې حالات په ډېره دقیقه توګه څارل ,اود جګړو د پراختیا سره سره یې پر هغې ډېر ژور نظر ساته.

د لویدیځ یو نامتو تاریخ پوه "ارنولد توبني "په خپل کتاب " اسلامي دعوت "کې ددې جګړې په اړه لیکلي دي ) :کله چې اسلامي لښکر د اردن سیمې ته ورسید او ابو عبیدهτ دفحل په سیمه کې واړول د سیمې مسیحي اوسیدونکو عربو مسلمانانو ته ولیکل :اې مسلمانانو !تاسې زمونږ لپاره د رومیانو څخه غوره یاست ،که څه هم چې د رومیانو سره زمونږ دین شریك دی ,،تاسې له مونږ سره وفادار یاست ,تاسې پر مونږ ډېر زړه سوی لرئ او پر مونږ ظلم او تیری نه کوئ ،ستاسې حکومت زمونږ لپاره ډېر ښه دی، خو دوی زمونږ په سیمو او چارو غلبه کړې ده...

د حمص د ښار اوسیدونکو د هرقل د لښکر پرمخ د ښار دروازې وتړلې ,او مسلمانانو ته یې ولیکل چې ستاسې حکومت او عدالت د دوی لپاره د رومیانو د ظلم او تیري څخه ډېر غوره دی.(

"اسلامي تاریخ ګام په ګام "څخه

## ددعوت ،ارشاد، جلب اوجذب کمیسیون

# دجنوري دمياشتنۍ راپور

دروان (۲۰۱۴م )کال دجنوري په مياشت کي هم دتېرومياشتوپه شان داسلامي امارت ددعوت ،ارشاد ،جلب اوجذب کميسيون په هڅواودځايي مجاهدينوپه ملاتړدافغانستان په مختلفوولايـاتوکي ۲۲۸تنـه چـي دکابـل اداري اړونـدبيلابيلوارګانونوکي پـه کاربوخـت وو دحقايقوپـه درک کولوددغـه فاسـداوګوډاګي رژيـم څخـه راووتـل اودا سـلامي امـارت دمجاهدينوسره يوځای شول.

ګرانولوستونکوهمدااهم دتسليم شووکسانوتفصيلي مياشتني ارقام :

| | | |
|---|---|---|
| ۱ | پکتيـــــکا | ۱۰تنه عسکر ، |
| ۲ | کنــــدز | ۵ تنه عسکر ، |
| ۳ | ننګـــرهار | ۴۸ تنه عسکر ، |
| ۴ | بدخشـــان | ۱ تنه عسکر |
| ۵ | لوګـــر: | ۳ تنه عسکر ، |
| ۶ | کنړ | ۸۱ تنه عسکر ، |
| ۷ | غزني: | ۱۱ تنه عسکر |
| ۸ | فراه: | ۲تنه عسکر |
| ۹ | ارزګان: | ۱۵ تنه عسکر |
| ۱۰ | فارياب: | ۱۵ تنه عسکر |
| ۱۱ | دايکنډي: | ۱۲تنه عسکر |
| ۱۲ | بادغيس: | ۱تن عسکر |
| ۱۳ | کندهار: | ۷تنه عسکر |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۴ | زابل: | ۴تنه عسکر |
| ۱۵ | سرپل: | ۴۲ تنه عسکر |
| ۱۲ | هرات: | ۳ تنه عسکر |
| ۱۷ | هلمند: | ۴تنه عسکر |

داسلامي امارت داتلومجاهدينوسره يوځاى شووبادركه هيوادوالو مختلفه النوع لوېږ اووړې وسلې ،مخابرې ،وسايط اويوزيات شمېرمهمات مجاهدينوته وسپارل.

دكابل دمنفوررژيم څخه راجلاشوواوداسلامي امارت له مجاهدينوسره يوځاى شووهيوادوالووعده وكړه چې نوربه دخپل ددين اووطن دخارجي اوداخلي مزدورانوسره هيڅ رازتعلق نه ساتي ،دخپل مظلوم ولس اومجاهدينووروڼوسره به همكاري كوي ،ترڅولوى خداى جل جلاله ژرترژره زموږله ويارلې خاوري څخه دكفر،فسق ، ،اشغال ،فحشاءاوګمراهيوكرغيړن ټغرټول كړي اودمسلمانانودخوښي يوسوچه اسلامي واكمني رامنځته كړي چي دټول افغانان پرې راټول شي.

داسلامي امارت ددعوت ،ارشاد ،جلب اوجذب كميسيون مشرتابه دوى ته هركلي ووايه ،انعامونه اوجايزې يې وركړې اوددوى همدانيک اقدام يې دپروستايه چي ديرغلګرو اولاسپوڅي رژيم څخه يې راووتل اودافغانستان اسلامي امارت دمجاهدينوسره يې خپل پيوستون اعلان كړ.

دافغانستان اسلامي امارت دګران هيوادڅخه دوحشي يرغلګرودشړلواوداسلامي اوملي نظام درامنځته كولوپه موخه دران سپېڅلى مقاومت په لړكي دنظامي فعاليت ترڅنګ سياسي ،فرهنګي ،تعليمي اودعوتي هڅي هم ګړندى كړي دي داسلامي امارت غښتلي مجاهدين دپراخوپوځي لاسته راوړنوڅخه علاوه هره مياشت دهيوادپه بيلابيلو ولايتونواوولسواليوكي ددعوت اوارشادكميسيون په هڅولكه پورته چي ذكرشول دكابل اداري څخه په سلهاووتنه كارمندان راوزي اوداسلامي امارت غيږي ته پناراوړي.

# داسلام غزوات او سرایا

شلمه برخه

## احد جنګ

ابو ظهیر

امام شافعي (صدق الله العظیم) وايي: هم دلته (الشیخین کې) در سول الله ( ـ ) په وړاندې هغه اوولس صحابه وړاندې شول دچا عمرونه چې له څوارلس کلونو ټیټ وو، رسول الله ( ـ ) هغوئ ټول دنابالغو په زمره کې وشمارل او بیر ته یې ولیږل (زرقانی ۲ټوک ۲۵مخ ،سیرة المصطفی مولانا کاندهلوي ۲برخه ۵۳۱مخ)

په هغوئ کې رافع بن خدیج (۵۸) هم و،د هغه عمر هم د څوارلس کلو شاوخوا و خو هغه داهوښیاري وکړه چې کله رسول الله ( ـ ) ته ورغی دخپلو پښنو دګوتو په سرونو ودریده ، څو له وني جګ ښکاره شي، رسول الله ( ـ ) هغه ته اجازت ورکړ او بیر ته یې ونه لیږه ، هم دا راز دهغه په باب رسو ل الله ( ـ ) ته دا هم وویل شول چې نوموړی د غشو په ویشتو کې بې پناه مهارت لري.

عمر بن عبد العزیز (رحمه الله) یو ځل له نافع نه وپوښتل :

عبد الله بن عمر (رحمه الله) په کومو غزواتو کې له رسول الله ( ـ ) ګډون کړی دی؟

نافع وویل:

ماته پخپله ابن عمر (رحمه الله) ویلي: کله چې دبدر غزوه کېده زه هغه مهال دیارلس کلن وم او کله چې د احد جنګ پیښ شو، زه څوارلس کلن وم ، مابدر ته دتلو اراده نه وه کړي، خو احد ته مي غوښته لاړشم او په جنګ کې ګډون وکړم، له رسول الله ( ـ ) مي غوښتنه وکړه ، خو دکم عمرۍ پر وجه یې ځما غوښتنه ونه منله ، هم داسي زیدبن ثابت اوعرابه بن اوس (رضی الله عنهما) دکم عمرۍ په وجه بیر ته ولیږل او رافع بن خدیج ته

دجګ قد په وجه اجازه ور کړه، کله چې دخندق غزوه کېده، څما عمر پنځلس کاله پوره شوی و، ماته رسول الله ( ـ ) پکې دګډون اجازه راکړه او ما درسول الله ( ـ ) سره يوځای په خندق کې ګډون وکړ.

ددې حديث په اوريدو عمربن عبد العزيز(رحمه الله) کاتب ته حکم وکړ ژر داحديث وليکه، کوم خلک چې خپلو ځامنو او ورونو لپاره له بيت المال نه دوظيفې غوښتنه کوي، دپوره تحقيق وروسته پنځلس کلن ځوانان دې دمجاهدينو او مقاتلينو په فهرست کې ځای کړای شي او هم دې له بيت المال نه هغوئ ته وظيفه مقرر شي او چې څوک دپنځلس کلو نه کم عمرلري، دهغوئ نومونه دې د"ذريه" ماشومانو فهر ست کې وليکل شي (عيون الاثر ۲۳۳)

کله چې رافع بن خديج (رض) ته رسول الله ( ـ )دتګ اجازه وکړه، سمرة بن جندب ( ● ) خپل علاتي پلار "مری بن سنان" ( ● ) ته دډېر حسرت او اافسوس په لهجه وويل:

اې پلاره! رافع ته يې اجاز ه وکړه اوزه پاتې شوم، حال داچې زه دهغه نه قوي يم اورافع څملوم!

مری بن سنان ( ● ) وويل:

يارسول الله (تارافع ته اجازه وکړه، اوځما ځوی دي بير ته ستون کړ، حال داچې ځما ځوی هغه څملوي

رسول الله ( ـ ) هغوئ ( رافع او سمره ﷺ) دواړه په غېږه ور وستل رښتيا سمره رافع څملاوه، په دې سره رسول الله ( ـ )سمره" ته هم ورسره دتګ اجازت ور کړ (طبری ۳ټوک ۱۲مخ)

ابن سعد ليکي: په دې کې لمر پرېوت اوماښام شو، بلال( ● )اذان وکړ، رسول الله ( ـ ) دصحابه ووسره يوځای دماښام لمونځ اداکړ او په الشيخين کې يې شپه شوه.

رسول الله ( ـ ) خپله بنی النجار ته لاړ اوبير ته يې دپنځوس تنوصحابه وو په سر محمد بن مسلمه ( ـ )د پهرې اوګزمې لپاره امير مقرر کړ، هغوئ ټوله شپه دلښکر څلور خواته په پهره اوګزمه تيره کړه.

مشر کان خبر شول چې رسول الله ( ـ ) هم روان شوی، هغوئ ټول غونډشول او عکرمه بن ابي جهل يې دنورومشر کانو ديوې ډلې لپاره د پهرې اوګزمې مشر مقرر کړ.

رسول الله ( ـ )د همدې شپې په وروستی برخه کې "له الشيخين" څخه روان شو "ابو حثمه الحارثي" ورسره دلار ښود په توګه ته، دسهار لمانځه وخت کيده چې احد ته ورسيد، بلال ( ـ ) ته يې وويل: بلاله !اذان وکړه هغه اذان او اقامت وکړ، بيا رسول الله ( ـ )صحابه صف، صف ودرول او دسهار لمونځ يې وکړ.

## دمنافقانو تيښته:

احدته له رسیدو وروسته رئس المنافقین "عبد الله بن ابی" ځان سره درې سوه کسیزه ډله بیولې وه، هغوئ دابن ابی په حکم بیر ته ستانه شول چې هغه ویل:

تاځما رایه ردکړه !او د ځوتنو ماشومانو خبره دې اومنله! مونږ ولې بې ځایه ځانونه دمرګ په خوله کې وتړو، مونږ داجنګ نه ګڼو، که ګڼلی مونو له تاسره موپکې ملګر تیا کوله.

دهمدوئ په باره کې داایت نازل شو:

وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ نَافَقُوا وَقِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوِ ادْفَعُوا قَالُوا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَاتَّبَعْنَاكُمْ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْإِيمَانِ يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِمْ مَا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ (ال عمرأن ۱۶۷ایت)

د هغوئ دتیښتې وروسته له رسول الله ( ـ ) سره اووه سوه صحابه پاتې شول، په هغوئ کې سل تنو ځانونه په زغرو پوښلي وو او په ټول لښکر کې ایله دوه اسونه وو، یو اس درسول الله ( ـ ) واوبل د "ابوبردة بن نیار حارثه" ( ● ) و (طبقات ۱ټوک ۲۲۹مخ طبری ۳ټوک ۱۲مخ)

د"خزرج" قبیلې نه "بني سلمه" او له "اوس "نه "بني حارثه" هم دبیر ته تیښتې اراده وکړه، ځو دادواړه دلښکر دواړو غاړو ته وې، په دې سره الهي قدرت له مسلمانانو مرسته وکړه چې هغوئ ته په یوځای دبیر ته تیښتې موقع په لاس ورنغله، دهغوئ په اړه داایت نازل شو:

إِذْ هَمَّتْ طَائِفَتَانِ مِنْكُمْ أَنْ تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ (۱۲۲)

یادکړئ هغه وخت چې کله همت دلاسه ورکړ له تاسونه دوه ډلو، الله ( ﷻ ) دهغوئ مددګار و، په دې سره هغوئ له بیر ته تګ نه خوندي پاتې شول اومسلمانانو ته په الله ( ﷻ ) باندې توکل پکار دی

## دلښکر صفونه تړل:

رسول الله ( ـ ) دلښکر په وړاندې راغی اوصحابه یې په صفونو کې ودرول دغه مهال له اس نه ښکته شو او دلښکر لیکې جوړولې، میمنه اومیسره یې وټاکلې، رسول الله ( ـ ) دلښکر لپاره داسې موقعیت غوره کړ چې احد غر یې شاته او مدینې منوره یې مخې ته راغله، دغه مهال درسول الله ( ـ ) په مبارک تن دوه زغرې وې او په سرمبارک یې دوسپنې "مغفر وبیضه" خولۍ وه، د"عینین" په نوم دغره چول چې دلښکر کیڼ لورته راته، دهغه له بره رسول الله ( ـ ) پنځوس تنه غشي ویشتونکي کینول، عبد الله بن جبیر ( ● ) دهغوئ لپاره امیر غوره کړ هغوئ یې پوه کړل چې تاسي به په دې ځای اوسنګر کې وئ او له شا به زمونږ دفاع کوئ، که تاسو

وليدل چې مونږ دغنيمت مالونو په ټولولو لګيايو هم تاسو به مونږ ته نه راځئ او که ليدل مو چې مونږ وژل کېږو هم تاسو به زمونږ سره مرسته نه کوئ!

مشر کان هم راغلل اودخپلو صفونو په جوړولو لګيا شول ، هغوئ په ميمنه "خالد بن وليد" او په ميسره "عکر مه بن ابی جهل" مقرر کړل ، په دواړو يې دوه سوه اسونه هم وګومارل، په سپرو يې "صفوان بن اميه" مشر مقرر کړ او "عمروبن العاص" يې په غشو ويشتونکو مشر کړ ، رسول الله ( ـ ) وپوښتل دمشر کانو بيرغ چا سره دی، صحابه وو وويل: "عبد الدار "سره رسول الله ( ـ ) و فرمايل : مونږ په عهد تر هرچا زيات دوفا کولو حقدار يو "مصعب بن عمير ● ته يې غږ کړ راشه !ته بيرغ پورته کړه! هغه بيرغ پورته کړ اودرسول الله ( ـ ) نه مخکې لاړ ودريده!

دقريشو دلښکر شمير :

دهغوئ لښکر کې درې زره جنګيالي وو، اووه سوه تنو زغرې اغوستې وې اودوه سوه په اسونو سپاره وو،درې زره اوښان وو، دمکې دپنځلس مشرانو ميرمنې هم راغلي وې ، هغوئ دشعرونو په ويلو نارينه وو ته جوش او جذبه ور کوله ( زرقاني ۲ټوک ۲۶مخ)

له هغوئ (قريشو ) سره چې کومې ميرمنې راغلې وې پکې دځينونومونه په لاندې ډول دي:

۱- هنده بنت عتبه حکيم دابوسفيان ميرمن اودمعاويه مور
۲- فاطمه بنت وليد دحارث بن هشام ميرمن
۳- برزه بنت مسعود دصفوان بن اميه ميرمن
۴- ريطه بنت شيبه دعمروبن العاص ميرمن
۵- سلافه بنت سعد دطلحه بن ابی طلحه ميرمن
۶- خناس بنت مالک دمصعب ابن عمير ( ● ) مور
۷- ام حکيم بنت حارث بن هشام دابوجهل دځوی عکرمه ميرمن
۸عمرة بنت علقمه



# المرتضى
کرم الله وجهه

## دامیر المؤمنین علی ابن ابي طالب ● کورنی ژوند لیک

## اوپه راتلونکي یې اغېزې :

ليكوال داسلامي نړۍ مفكر عالم مولانا سيد ابوالحسن علي ندوي (رح) ژباړه : شهاب ' منصور' ۷ برخه

### دحضرت فاطمه اوعلي (رضي الله عنهما) عقد:

دهجرت په دويم كال رسول الله (ﷺ) دخپلې ګرانې لور (فاطمةرضی الله عنها) دنكاح عقد دعلي بن ابي طالب (رضي الله عنه) سره وكړ، دغه مهال رسول الله (ﷺ) هغې (حضرت فاطمه رضی الله عنها) ته وفرمايل: ما ستا نكاح پخپلو اهل بيتو كې له يو غوره سړي سره كړې ، بيا يې دعا وكړه او په دواړو يې اوبه وشيندلې (ازالة الخفاء ۲۵۴مخ)

ابوعمر له عبيد الله بن محمد بن سماک بن جعفر الهاشمي نه دا روايت كړی چې : رسول الله (ﷺ) د خپلې لور (حضرت فاطمه (رضی الله عنها) نكاح دحضرت علي (●) سره دا احد جنګ نه وروسته وكړه ، دغه مهال هغه (حضرت فاطمه رضی الله عنها دپنځلس كالو او پنځوينيمو مياشتو په عمر وه اوحضرت علي بن ابي طالب (●) عمر يو يشت كاله او پنځه مياشتې و.

حضرت شاه ولي الله محدث دهلوي (رحمه الله) ته ددې روايت په منلو كې تردد شته ، په دې چې دا احد غزوه دهجرت په دريم كال شوال كې پېښه شوې اود همدې (احد) غزوې وروسته حضرت علی (●) حضرت فاطمه (رضی الله عنها) ته وويل: "اغسلی عنی الدم" ځما له بدنه دوينو داغونه ووينځه ، چې د دواړو نكاح نه وه شوې بيا څنګه دا ممكن ده (ازالة الخفاء ۲۵۴مخ)

صحیح داده چې له احد غزوې وړاندې ددواړو نکاح شوې وه، ددې تر ټولو لوی دلیل دادی چې دا خبره له تاریخي پلوه هم منلې ده، چې د حضرت حسن (●) زوکړه، دهجرت په ۳ کال دشعبان په منځ کې (په بل قول: رمضان کې) شوې، د احد وروسته دنکاح په اړه روایت په هیڅ صورت صحیح او دمنلو ندی

دحضرت فاطمه (رضی الله عنها) او حضرت علي (AA) دنکاح په لړ کې مفصل حدیث په "مسند علي" کې راغلی، حضرت علي (AA) درسول الله (ـ) په وړاندې خِطبه (پیغام) څه ډول ولیږه؟ هغه وایي:

ماغوښتل رسول الله (AA) ته په دې اړه پیغام ولیږم، خو په زړه کې به مي ویل چې اوس خوزه تش لاس یم هیڅ راسره نشته! ځنګه پیغام ولیږم؟بیابه راته له رسول الله (ـ) سره خپل قرابت او نیږدیوالی راپه زړه شو، ولې هغه محبت اوشفقت چې درسول الله (ـ) په ما باندې و، ډیر زیات و، یو ه ورځ مي همت وکړ ،ورغلم رسول الله (ـ) ته مې وویل ، رسول الله (ـ) وفرمایل: تا سره څه شته؟ ماعرض وکړ :هیڅ نشته راسره ، وي فرمایل: تاته په فلاني وخت کې چې ما د "حطیمه" په نوم زغره در کړې وه هغه درسره ده؟ ماعرض وکړ هو! هغه راسره شته ، وې فرمایل: هغه دې (فاطمه رضی الله عنها ته ور کړه) ما هغه ور کړه (یعني دمهر په تو ګه) (مسندالامام احمدبن حنبل مسند علی بن ابی طالب ●)

عطاء بن السائب له خپل پلار او هغه له حضرت علي (AA) روایت کوي: چې رسول الله (ـ) حضرت فاطمه (رضی الله عنها) په یوه ټیکرۍ کې رخصت کړه اوپه جهیز کې یې ور ته یو مشک، یوه دځرمني تکیه ور کړه ، چې د "اذخر" له پاڼو ډکه شوې وه، کوم چې یو خوشبویه وابنه دی او په عربو کې موندل کیږي

## ځیر نه:

دمعتبرو اوثقه روایتونو څخه معلومیږي چې حضرت ابوبکر (صدیق AA) حضرت علی (●) ته له حضرت فاطمه (رضی الله عنها) سره دواده سامان او نورو څیزونو په اړه هم مرسته وکړه، چې شیعه عالمان هم په دې اعتراف لري( وګورئ الامالی شیخ ابی جعفر الطوسی ۱ټو ک ۳۹مخ نوی چاپ نجف اشرف عراق)

## د علي AA او فاطمه رضی الله عنها اقتصادي وضعیت:

علي اوفاطمه (رضی الله عنها) (په رسول الله (ـ) زیات ګران ول اورسول الله (ـ) (چې الله ﷻ ته تر هر چا زیات ګران و) ژوندیې ساده او له صبر ډک و، "هناد" له "عطاء" نه روایت کوي چې ماته ویل شوي: حضرت علي (AA) فرمایل: په مونږ داسي ډیرې ورځې راغلي چې په کور کې مو دخوراک لپاره هیڅ هم نه لرل اونه به دنبي (ـ) سره څه وو، په همدې زمانه کې یوه ورځ بیرون له کوره ووتم ،لار کې مي یو دینار پروت ولید، ټکان مي وخوړ او ودریدم، په زړه کې مي دا سوچ کاوه، چې را پور ته یې کړم کنه؟ خو ولږه راباندې دومره قوي وه چې دپور ته کولو فیصله مي وکړه، راپور ته مي کړه ،دهغو اوښانو له څښتنانو مي اوړه واخیستل کومو

چې له بيرونه مدينې ته اوږه راوړل،بيا مي هغه اوږه راوړل فاطمه (رضی الله عنها) ته مي ور كړل، ځو ترې ډوډۍ پخه كړي، هغه يې په اغېزلو لګيا شوه، خو د زياتې ولږې نه دومره كمزوري وه چې د اغېزلو دوران كې به يې لاسونه له لوښي خطاء كيدل اوخوړيدل، په څه تكليف يې واغېزل اوډوډی يې پخه كړه، ما رسول الله ( ـ ) ته راوړه اوټوله كيسه مې ور ته عرض كړه وي فرمايل: وي خورئ الله ( ﷻ ) دا روزې ستاسي له لارې مونږ ته هم راكړه ( كنز العمال للعلامه المتقی برهانپوري ۷ټوک ۳۲۸مخ ) دا رويت ابوداود له سهل بن سعد نه په يوه اوږده حديث كې نقل كړی دی (۱ټوک ۲۴۰ مخ)

علي ( ● ) فرمايل: ما دفاطمه بنت محمد ـ سره په داسي حالت كې نكاح وكړه چې نه ما سره اونه دهغې سره له يوې څرمنې پر ته بله بستره نه وه، مونږ په هغه دشپې ويده كيدوبه او دورځې به مو اوزې ته وابنه اچول ددې پر ته نه مونږ سره خادم و، ( كنز العمال ۷ټوک ۱۳۳مخ)

طبراني په معتبرو اسنادو ( اسنادحسن ) نقل كړې چې حضرت فاطمه (رضی الله عنها) ويل: يوه ورځ رسول الله ( ـ ) د دوئ كره راغی وي وفرمايل: ځما بچيان چيرې دي يعنې حسن اوحسين ﷺ ما (فاطمه ﻫﺎ) ور نه وويل: نن چې مونږ سهار راپور ته شوي يو، زمونږ كور كې دومره څه نه وه چې دغابښ لاندې مې مو كړي وای ، دهغوئ پلار ويل: دواړه زه ددې لپاره بيرون بوځم، كه كور كې وي بيا تاته ژاړي او تاسره خوځه نشته، هغه دفلاني يهودي خو اته لاړ ، رسول الله ( ـ ) پسي هلته ورغی، وي ليدل چې ماشومان ديوې "صراحي" سره لوبيدل او په مخ كې يې له نورو دخوړو پاتې دغدارې شان خرماوي ايښي وي ، رسول الله ( ـ ) وفرمايل: علي! ماشومان كور ته بوځه ګرمي په زياتيدو ده ،هغه وويل يارسول الله! نن سهار راهيسي زمونږ كور كې هيڅ هم نشته، كه ته لږ ځنډ تم شي، زه دفاطمه رضی الله عنها) لپاره به لږ خرماوي ټولې كړم، رسول الله ( ـ ) كيناست، تردې چې دفاطمه (رضی الله عنها) لپاره يې لږ خرماوي ټولې كړي، علي (ﻫﺎ) هغه په ټوټه كې وتړلې اوبيا هغوئ دواړه په غيږ كې پور ته كړل او كور ته لاړل.

امام بخاري رح دحضرت علي ( ● ) نه روايت كوي: چې حضرت فاطمه (رضی الله عنها) دپرلپسي ميچنې ګرزولو له امله چې هر وخت سترې وه ،خبره شوه رسول الله ( ـ ) ته غلامانان راغلي، رسول الله ( ـ ) ته ورغله ليكن رسول الله ( ـ ) نه وه، هغې حضرت عايشه (رضی الله عنها) ته خبره ياده كړه، حضرت عايشه (رضی الله عنها) رسو ل الله ( ـ ) ته عرض كړه، بيا رسول الله ( ـ ) زمونږ كور ته راغی، زمونږ دخوب ترځايه راغی، مونږ پور ته شولو، وي فرمايل: پخپل ځای كينئ پور ته كېږي مه، دغه مهال ما د رسول الله ( ـ ) دمبارك قدم يخوالی پخپله سينه كې محسوس كړ، بيا رسول الله ( ـ ) وفرمايل: تاسو دواړو چې دكوم شيز غوښتنه كړيده زه تاسو ته يوبل غوره شيز ونه ښايم؟ هر كله چې تاسي څملاستئ نو ۳۴ ځله ، الله اكبر ، ۳۳ ځله الحمد الله او د ۳۳ ځله

سبحان الله لولئ دا به تاسو دواړو ته له هغه څه نه زيات کومک در کړي د کوم چې غوښتنه کوئ (بخاری کتاب الجهاد باب الدليل على ان الخمس لنوائب رسول الله ـ )

ه بل روايت کې دا واقعه داسي راغلي: رسول الله ( ـ ) وفرمايل: زه "اهل صفه" پرېږدم څوک چې زياتې لوږې د‌ېر کمزورې کړي ؟ تاسو ته غلام نشم در کولی، ما سره د اهل صفه وو دخوړو لپاره څه نشته، غلامان پلورم وربانديې دهغوئ لګښتونه پوره کوم.

## درسول الله ( ـ ) داسانتيا لپاره زيار:

ددومره زياتې فاقې، لوږې او تنګ لاسی باوجود علي ( ● ) درسول الله ( ـ ) دراحت لپاره، او دالله ( ﷻ ) لور ته ددعوت اوجهاد لپاره يوه دقيقه هم په غفلت کې نه تيروله او نه يې ځان وروسته کاوه.

ابن عساکر له حضرت عبد الله بن عباس (رضي الله عنه) نه روايت کړی وايي: يوه ورځ درسول الله (صلی الله عليه وسلم) په کور کې فاقه وه، حضرت علي ( ● ) ته معلومه شوه، هغه دمزدورۍ په تلاش له کوره ووت، څو دومره شی پيدا کړي چې درسول الله ( ـ ) ضرور ت پوره شي، په دې پلټنه کې ديوه يهودي باغ ته ورغی، دهغه باغ ته له کوهي نه داوبو راويستو ذيمواري يې واخيسته، او ديوې بو کې اوبو راويستلو اجوره يوه خرما وټا کله، حضرت علی( ● ) اوولس بو کې اوبه وويستي، يهودي ور ته واک ور کړ چې هر قسم خرماوي خوښوي ترې اوولس دانې پور ته کړه، علي (رض) عجوه خرما خوښه کړه اوولس دانې پور ته کړي او رسول الله( ـ ) ته يې راوړي، رسول الله ( ـ ) وفرمايل: علي! دا دي کوم ځايه راوړي؟ علي(رض) عرض و کړ: يا نبی الله! ما ته معلومه شوه، چې نن تاسو دفاقې سره مخ ياست ! له دې وجې زه په مزدورۍ پسي ووتم، چې يو څه دخوراک پيدا کړم، رسول الله ( ـ ) وفرمايل: ته دېته دالله او دالله درسول سره محبت تيار کړي ؟ هغه عرض و کړ: هو! يا رسول الله ! رسو ل الله ( ـ ) وفرمايل: دالله او رسول الله سره محبت کوونکی داسي څوک نشته، چې په هغه افلاس دومره تيز نه وي راغلی لکه دسيلاب اوبه چې پخپل لور تونديې بهيږي اوڅوک چې دالله او دهغه درسول سره محبت کوي هغه ته پکار دي چې دمصايبو په مخنيوي کې ډال شي، يعني دساتنې اسباب برابر کړي ځيرنه: عجوه دمدينې منورې په ښو اوخوږو خرماوو کې شمارده ،خلک هغه تبر کاً غوره ګڼي نوربيا

# جنګي جنايتونه (جنوري)

**سيدسعيد**

دروان (۲۰۱۴ز،)کال دجنوري په ۲مه نيټه رسنيوخبرورکړچي :دکاپيساولايت داله ساى ولسوالۍ په بازارکي دطالبانواوداخلي عسکروترمنځ ترنښتي وروسته دکورنيوعسکروپه ډزوکي ديوې ميرمني اويوه ماشوم په ګډون ځلوروتنو ملکي هيوادوالوته مرګ ژوبله اوښتې ده .

دجنوري په ۴ مه فراه ولايت دبالابلوک ولسوالۍ دشيوان سيمه کي داستخباراتواړوندعسکرواواربکيانو ځلويښت تنه ولسي وګړي بنديان اوشکنجه کړي دي، همداولسي خلګ په دغه سيمه کي دطالبانوله لوري ديواربکی دنيول کيدوپه جرم !بنديان شول،وروسته خلګودولسوال اواړونده ارګانوندغه عمل پرضدپراخي مظاهرې وکړې اودخپلوخلګو دژر تر ژره خوشي کيدو غوښتنه يې کوله .

دجنوري په ٦مه نيټه اشغالګرو ځواکونوداخلي عسکروپه ملتيادميدان وردګ ولايت دسيداباد ولسوالۍ دشينزدرې پرسيرک کلي دچاپې پرمهال لومړی دخلګوکورونه تلاشي کړي بيادکلي جومات ته تللي دمسجداوقران عظيم الشان بې عزتي يې کړې .

عيني شاهدانو رسينوته ويلي چي يرغلګرواوکورنيوعسکرودکورنود پلټني پرمهال سپين ږيري،زنانه اوماشومان له خپلوکورونوڅخه وتلوته اړايستلي اودژمي په سړه هواکي يې ترسهاره ترشنه اسمان لاندي ايسار کړي وو،نوروعسکروبياپه دغه شپه دپلټني په پلمه دجومات صحن تخريب کړی،دمسجدپه الماريوکي دقران کريم اوسورت يس ګڼي نسخې يې پرمځکه غورځولي اوپاڼي پاڼي کړي ، همدارازدسيمه ييزوخلګوله خولې ويل شوي ،سهارچي دوی جومات ته ورغلل وحشي عسکروپه يادشوي جومات کي چي دحاجي هزارګل په نوم مشهوردی ګندګي هم کړې اومسجدېې بيخي په بل مخ اړولی ؤ.خلګودير غلګرواوداخلي عسکرودياداشوي عمل پرضد لويه مظاهره وکړه اودهمدې پيښي دعاملينودمحاکمې غوښتنه يې وکړه .

دجنوري په ۷مه یرغلګرو ځواکونو دشپنیو عملیاتو په لړ کي دمیدان وردګ ولایت دچک ولسوالۍ په بمبایو کلي کي د عامو خلکو په کورونو چاپه وهلې او څلور تنه کلیوال یې له ځان سره دبندیانو په توګه وړي دي .

دجنوري په ۱۱مه امریکایانو دهلمندولایت دمرکزلښکرګاه په بولان سیمه کي یو څلورکلن ماشوم په دې تورچي ګواکي مخالف جنګیالی دی شهید کړی دی ، همدغه پیښه د هلمند والي نعیم بلوڅ هم تائید کړې ده .

دجنوري په ۱۳مه دکندهارولایت د میوندولسوالۍ دسنګین درواهي په سمه کي یرغلګرواوداخلي عسکرویوسړی اویوه ښځه چي ددوی له قرارګاه سره نژدې تیریدل شهیدان کړي دي .

دجنوري په ۱۵مه اربکي ملېشو د کاپیسا ولایت دتګاب ولسوالۍ په جویبار سیمه کي یو۱۴کلن هلک شهید کړی دی .

دجنوري په ۱۵مه د تخار ولایت د درقد ولسوالۍ کي کورنیوعسکرودولسي خلګوپر کورونودچاپې په تـرڅ کي لـس تنه ملکي وګړي بندیان کړي دي .

دجنوري په ۱۵ مه اشغالګروځواکونودمیدان وردګ ولایت د سیدآباد ولسوالۍ د تنګي درې په دولت خیلو کلي کې د ضابط شربت خان په کور دچاپې په ترڅ کي دنوموړي کور ته ډیر مالي تاوان رسولی اویوتن محصل یې دبندي پـه توګـه څني بیولی دی .

دجنـوري پـه ۱۵مـه یرغلګروځواکونودافغـان عسکروپه ملتیـادپران ولایـت دسیاګردولسوالۍ پـه وازغـردرې کي دولسي خلګو پر کورونوبمبار کړی ، په دغه بمبار کي دښځواوماشومانوپه ګډون اته ویشت تنو ولسي وګړوتـه مـرګ ژوبلـه اوښتې ده ، سیمي ته دکابل اداري داستول شـوي پـلاوي مشـراود ولسي جرګې غـړي (عبدالستارخواصي) ازادي راډیوتـه وویل چي : «بهرني پوځیان دبې ګناه افغانانوژوندته احترام نه لـري ،دسیادګردولسوالۍ پـه وازغـردره کي یې ټولـه شپه بمباري کړې ،۱۷تنه ولسي وګړي پکي شهیدان شـوي اویوشمېر ټپیـان شـوي ، همدارنګـه شپېراووه کورونـه هـم پـه دغـه بمبار کي وران شـوي دي » .خواصي وویـل چي :بهرنیوعسـکرو د تلاشي پرمهـال دکورونـودروازې هـم پـه بمونوالـوزولي اوخلګ یې ځورولي دي .

دجنوري په ۱٦مه د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ په قرباني سیمه کي دیرغلګرودبې پیلوټه الوتکي په بریـد کي یوملکي سړی ( زین الله د رحمت الله زوی ) شهیدشوی دی .

دجنوري په ۱۷ مه داروزګان ولایت د چنارتو ولسوالۍ دشفلغ مانده په سیمه کي دداخلي عسکرودهاوان ګـولۍ پـر یو کورلګیدلې ، یوه نجلۍ پکي شهیده شوې اوبله ژوبله شوې ده .

دجنوري په ۱۹ مه یرغلګروځواکونودشپنیوعملیاتوپه لـړ کـي د میـدان وردګ ولایـت دسیدآباد ولسوالۍ د تنګي پـه رحمان خیلو کلي کي دولسي وګړي (احمدجان) په کور چاپه وهلې ،دتلاشۍ پرمهال یې په دغه کور کي هـیڅ تخریبي تـوکي نه دي موندلي خومالي زیان ورته اړولی اودرې تنه ملکي هیوادوال ( شفیع ، سیف الرحمن او رفیع )یې بندیان کړي دي .

دجنوري په ۱۹مه یرغلګروګواکونودهلمندولایت د ګرشک ولسوالۍ دقلعه ګز دریګن مانده په سمیه کي دچاپي پرمهال درې تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي .

دجنوري په ۲۰ مه دزابل ولایت د نوبهار ولسوالۍ په کرم خېل، چینو والواوفیض اباد سیمو کي یرغلګرواوداخلي عسکرودتلاشي په پلمه ولسي خلګ ځورولي اوپه پنځه تنه ولسي وګړي یې بندیان کړي دي .

دجنوري په ۲۰ مه دغورولایت د شینکوټ ولسوالۍ په تشتک سیمه کي اربکیانو پر یوکوریرغل کړی او دوه تنه ولسي هیوادوال یې پکي شهیدان کړي دي .

دجنوري په ۲۰مه نیته دهلمندولایت دنوزادولسوالۍ دګورجستاني عسکروکمپ سره څېرمه افغان عسکرودخبریالانوپه مخ کي یواووه کلن ماشوم وژلی، دهلمندولایت مدني ټولني چي دغه پیښه یې له نږدې څارلې ویلي چي یادشوی هلک په داسي حال کي په نښه شوی چي عسکروته یې دسلام په دودلاس پورته کړی ؤ.

دجنوري په ۲۱مه رسنیودهلمنددچارواکوله خولې خبرور کړچي د نهرسراج په الکوزوښاخ سیمه کي وسله وال مخالفین (طالبان) داختر محمد په نوم یو کس کورته ورغلي اودنوموړی په ګډون یې دهغه میرمن اوماشوم زوی درې واړه دخوب پرمهال وژلي دي، دهلمنددامنیه قوماندانۍ دمطبوعاتي امرسمونوال عبدالاحدچوپان په ویناطالبانوهمداکسانددلت سره دهمکارۍ اوپه دې خاطروژلي چي په دغه سیمه کي دسفرمحمدپه نوم یوکس یوکال مخکي دطالبانوپرضدپاڅون وکړاودپولیسودلومړي کنډک په مرسته یې دغه سیمه له طالبانوتصفیه کړه.

ددې پیښي په سبادوژل شوي کس (اخترمحمد)زوم عبدالولي دپیښه اصلي واقعیت په دې ډول روښانه کړچي :«زماخسر،خواښې او کوچنی زوی یې طالبانونه دي وژلي، دوی په دغه کلي کي داربکیانودقوماندان سفرمحمدوراره او ساتونکي په ډیره بې رحمانه توګه وژلي دي».دهلمندولایتي چارواکو هم داربکیانوله لوري د همدې درې تنوولسي وګړو وژنه منلې ده، دوی ویلي چي ددغي پیښي عاملین به نیسي اودقانون منګولوته به یې سپاري ؟!.

دجنوري په ۲۱مه دزابل ولایت دشینکۍ ولسوالۍ په مرکزکي په سلهاووتنوقومي مشرانو،علماوواوعاموخلګوداربکیانوپرضدمظاهره وکړه، لاریون کونکوچي( مردابادامریکا) نارې یې وهلې د کرزي درژیم څخه وغوښته چي داربکیانوله شره یې خلاص کړي، دوی ویل چي اربکیانو دخلګودځورولواوتهدیدولوسربیره اوس دوکانداران مجبورکړي چي دمیاشتي زرزرافغانۍ ورکړي،څه وخت مخکي یې داسحاقزي په نوم یوتن په همدې خاطرچي اربکیانوته یې پیسې نه ورکولې شهید کړ ،همدا رازخلګوداربکیانوڅخه په دې هم شکایت کاوه چي قومي جنجالونه رامنځته کوي .

دجنوري په ۲۱مه دکاپیسا ولایت دنجراب ولسوالۍ په افغانیه دره کي دداخلي عسکرودهاوان د ډزوله امله شپږتنه ولسي وګړي ټپیان شوي اویوه اته کلنه نجلۍ شهیده شوې ده .

دجنوري په ۲۲مه دهلمند ولايت د مارجې ولسوالۍ دسستاني په سيمه کي داربکيانو قوماندان (عبدالمالک ) يونهه کلن ماشوم شهيد کړی ، همدغه پيښه دهلمندولايتي چارواکو هم منلې ده .

دجنوري په ۲۳مه اشغالگرو عسکرو د لوگر ولايت دبرکي برک ولسوالۍ د چلوزيـو پـه مهمندو سيمه کي دچاپې پر مهال دوه تنه ولسي وگړي بنديان کړي دي .

دجنوري په ۲۴مه ماښام د غزني ولايت دگيلان ولسوالۍ په پيتاو کلي کي سيمه ييزو اربکيانو يـو دوکاندار (بسم الله) په دې گناه چي ولي په دوکان کي نشه يي توکي نه خرڅوي په وهلوکي شهيد کړی دی .وروسته بياخلکودگيلان پـه بازار کي دهمدې پيښي اودابکيانودنوروظلمونوپرضدلويه مظاهره وکړه.

دجنوري په ۲۵مه د لغمان ولايت د الينگار ولسوالۍ په لوکاټ سيمه کي دداخلي عسکروپه مخامخ ډزوکي درې تنه ماشومان شهيدان شوي اويوبل ژوبل شوی دی ،همداکوچنيان په داسي حال کي وژل شوي چي په لوبوبوخت وو.

دجنــوري پــه ۲۶مــه د کنــدز ولايــت د علــي ابــاد ولســوالۍ پــه دوهــم اودريــم لالــه ميــدان ســيمه کــي داردوعسکرواواربکيانودخلگوپر کورونوچاپې وهلي ،دتلاشۍ پر مهال يې خلگوته مالي زيانونه اړولي، مبايلونـه اونورشـيان يې ځني وړي اودرې تنه ولسي وگړي يې بنديان کړي دي .

دجنوري په ۲۶مه دزابل ولايت د شملزو ولسوالۍ په مختلفوسيموکي اربکيانوولسي خلگ وهلي دوکانونو يې چـور کړي، ددوکانونواوکورونوڅخه يې ٦لکه افغانۍ، زيوارت اونورقيمتي شيان غلاکړي اوپنځه تنه کليوال يې هم له ځان سره دبنديانوپه توگه بيولي دي .

دجنوري په ۲۹مه د بدخشان ولايت د جرم ولسوالۍ په کيب کلي کي دداخلي عسکروپه ډزوکي درې تنـه ملکي وگړي چي دوه يې ماشومان دي شهيدان شوي دي .

دجنوري په ۲۹مه د کاپيسا ولايت داله ساى ولسوالۍ په مرکز ي سيمه کي د کورنيوعسکرو د هـاوان مرمـۍ پـه يـو کور را پرېوتي چي امله يې يو ملکي وگړی شهيد شوی اودوه تنه ژوبل شوي دي .

دجنوري په ۳۰ مه ماښام اشغالگرو عسکرو د ميدان وردگ ولايت د سـيداباد ولسوالۍ د شـنيز درې پـه صدو خيـل کلي کي پرولسي خلگودچاپې پرمهال دوه وروڼه (نجيب او حامد)او درې تنه ميلمانه يې چي د مور د فـاتحې لـه پـاره يې راغلي وو له ځان سره بنديان کړي د ي .

مأخذونـه :[بـي بـي سـي راډيـو ،ازادي = ،افغـان اسـلامي اژانـس ،پـژواک ،خبريـال ويبپاڼـه ،لراوبـر= ،نـن ټکـی اسيا=اوبينوا=]

# د جهاد فقهي مسایل

شپږمه برخه

مفتي ابو محمد" حقاني"



### د بيت المال سالميت او فساد

لکه مخکې مو چې ورته نغوته وکړه، د بيت المال مکان نه بلکې جهت معتبر دی ،همدا سې دا هم د پټولو نده ،چې وو ايو چې بيت المال کله نا کله د ځينو منافي عوارضو او نا جايزوو جوهاتو په بناء له صحت او سالميت څخه د فساد خواته هم ځي ،دې صورت کې بيا د بيت المال د جوړښت اصلي غرض چې د مسلمانانو د مصالحو په نظر کې دي ،له منځه ځي او اصلي مقصود يې فوت کيږي ،دلته به هغه لاملونه وڅيړو ،چې له امله يې په بيت المال کې فساد رامنځته کيږي.

چې کله امام يا حاکم عادل وي، نو بيت المال له فساده بچ وي ،له خلکو څخه د بيت المال حقوق را اخلي او مستحقو خلکو ته يې ورکوي ،خو چې دوخت حاکم عادل نه وي، نو د خلکو نه به اموال په نا حقه را اخلي او يا به يې په حقه را اخلي ،مګر د مسلمانانو له مصالحو پرته به يې بل ځای او په غير شرعي وجه کې لګوي ،د بېلګې په توګه د بيت المال پيسې په خپلو شخصي مصالحو لګول ،يا په نا مستحقو اقاربو او خپلوانو مصرفول ،همدا سې د بيت المال متولي يو نا انصافه او نا عادله شخص ټاکل ،دا هم د بيت المال د تضييع هڅه ده، او هغه چې علامه شامي رح ورته نغوته کړې داده چې دا هم د بيت المال فساد دی ،چې د بيت المال د يوې خونې مال له بلې خونې سره خلط او ګډ شي، ځکه احناف دا دواجبا تو څخه بولي ،چې د بيت المال د هر بيت يا خونې اموال به سره بيل بيل وي، که ګډ شي بيا د بيت المال فساد رامنځته کيږي ،چې دالموسوعې په لاندې عبارت کې چې همدا تشريح شوی مفهوم نغښتی دی:

يَكُونُ بَيْتُ الْمَالِ مُنْتَظِمًا إِذَا كَانَ الإِمَامُ عَدْلًا يَأْخُذُ الْمَالَ مِنْ حَقِّهِ ، وَيَضَعُهُ فِي مُسْتَحِقِّهِ. وَيَكُونُ فَاسِدًا إِذَا كَانَ الإِمَامُ غَيْرَ عَدْلٍ ............. وَمِنْ أَوْجُهِ فَسَادِ بَيْتِ الْمَالِ أَيْضًا مَا أَشَارَ إِلَيْهِ ابْنُ عَابِدِينَ: أَنْ يَخْلِطَ الإِمَامُ أَمْوَالَ بُيُوتِ الْمَالِ الأَرْبَعَةِ بَعْضَهَا بِبَعْضٍ ، فَلَا تَكُونُ مُفْرَزَةً (ابن عابدين ٢ / ٥٢ ) .

## د بيت المال دفساد په صورت کې پرې مرتب احکام

کله چې بيت المال کې دمذکورو وجوهاتو په اساس فساد رامنځته شو ،نو لاندیني احکام پرې مرتب کيږي الف: که چيرته پريوه شخص دبيت المال حق تثبيت و ،خو دده هم دبل کوم جهت څخه بيت المال کې حق جوت و ،مګرچا يې حق نه ورکاوه ،دا شخص کولای شي چې دخپل حق په اندازه دبيت المال څخه حق ځانته ستون کړي ،خو که بيت المال کې يې حق نه و ،خو پرده دبيت المال حق و ، دبيت المال دفساد په صورت کې دا شخص مذکورکولای شي ،چې دبيت المال حق دبيت المال په مصارفو کې لکه دجومات يا رباط جوړولو غوندې ځايونو کې مصرف کړي ، ب:که چيرته ديوچا بيت المال کې حق و ، سلطان يې حق نه ورکاوه او دا پدې کامياب شو ، چې له بيت المال څخه خپل حقوق تر لاسه کړي ،نودځينو فقهاوو له نظره يې جواز شته. چې دامام غزالي رح له څلورو اقوالو څخه يو قول همدا دی ،دويم قول يې دادی چې هره ورځ خپل خرڅ يا قوت له بيت المال څخه اخستلای شي ،دريم قول يې ،دکال کفايه هم له بيت المال څخه اخستلای شي ،څلورم قول يې دادی چې بې له اجازې هيڅ شئ هم نشي اخستلای ، مالکيان بيا وايي چې له بيت المال څخه په هيڅ صورت کې چې سالم وي که فاسد غلا نده روا ،خو داحنافو نظر دادی چې ديانةً خپل حق له بيت المال څخه پداسې حالاتو کې اخستلای شي ،مګر دبيت المال له هغې خونې به يې اخلي ،چې چيرته دده حق پکې جوت دی، البته دضرورت پر وخت ،لکه نن سبا يې له بلې خونې هم اخستلای شي ،ځکه دبيت المال ټولې خونې سره مختلطې شوي دي ،او دده دا استحقاق خونې ته انتظار کول ناشونې دي لکه چې علامه ابن عابدين شامي رح پرې فتوی هم ورکړې ده

أَنَّ لِمَنْ عَلَيْهِ حَقًّا لِبَيْتِ الْمَالِ - إِذَا لَمْ يَطَّلِعْ عَلَيْهِ - أَنْ يُمْنَعَ مِنْ ذَلِكَ الْحَقِّ بِقَدْرِ حَقِّهِ هُوَ فِي بَيْتِ الْمَالِ ........الى ان قالَ: إِذْ لَوْ لَمْ يَجُزْ أَخْذُهُ إِلا مِنْ بَيْتِهِ لَزِمَ أَنْ لا يَبْقَى حَقٌّ لأَحَدٍ فِي زَمَانِنَا ؛ لِعَدَمِ إِفْرَازِ كُلِّ بَيْتٍ عَلَى حِدَةٍ ، بَلْ يَخْلِطُونَ الْمَالَ كُلَّهُ. وَلَوْ لَمْ يَأْخُذْ مَا ظَفِرَ بِهِ لَمْ يُمْكِنْهُ الْوُصُولُ إِلَى شَيْءٍ ، كَمَا أَفْتَى بِهِ ابْنُ عَابِدِينَ (العذب الفائض ١ / ١٩ ) .

## پر بیت المال تیری کول

فقهاء پدې اختلاف نلري ، چې که چا دبیت المال کوم شئ نا حقه تلف کړ ، دتلف شوي مال ضامن به وي ، همداسې که په نا حقه یې کوم مال ترې واخست ، بیرته یې ورکول پرې لازم دي ، که مثلي و ، مثل به یې ورکوي ، که قیمي و ، قیمت به یې ورکوي ، دا اتفاقي خبره ده ، اختلاف صرف پدې کې دی ، چې دبیت المال نه دغلا کوونکې لاس پریکول څه حکم لري ، دحضرت ابن عباسτ دروایت او حضرت عمر τ دحکم په استناد احناف ، شوافع او حنابله وایې: چې دبیت المال څخه دغلاکوونکې شخص لاس غوڅول نشته ، خو مالکیان دسرقې د آیت دعموم په استناد وایې چې دبیت المال له غله څخه هم قطع الید شته لکه دالموسوعې په لاندیني عبارت کې راغلې :

وَلَهُمْ فِي ذَلِكَ اتِّجَاهَانِ : أَحَدُهُمَا - وَإِلَيْهِ ذَهَبَ الْحَنَفِيَّةُ وَالشَّافِعِيَّةُ وَالْحَنَابِلَةُ : أَنَّ السَّارِقَ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ لَا تُقْطَعُ يَدُهُ ...... وَثَانِيهِمَا - وَإِلَيْهِ ذَهَبَ الْمَالِكِيَّةُ أَنَّ السَّارِقَ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ تُقْطَعُ يَدُهُ ................

## دبیت المال دمصرف لومړیتوبونه

دامام مالک رح او امام شافعي رح دمذهب دعلماوو نظر دادی ، چې دبیت المال په مصرف کې دحضرت عمر τ دا اقتداء په اساس مستحب داده ، چې درسول الله ρ اولادې ته لومړی د(دیوان العطاء) څخه عطایا ورکړل شي ، بیا وروسته واجب داده ، چې دسیمې داوسیدونکیو په مصالحو لکه دجوماتونو په جوړیدو ، سرحداتو کې دا ستحکامې مورچلونو په تعمیر ، دقاضیانو او مؤذنینو په روزي ، ددوئ دپورونو په خلاصیدو او دجنایاتو په دیتونو او هم ددوئ په کلنۍ کفایه ولګول شي ، اوکه چیرته ددې سیمې یا ښارچې بیت المال حقوق ورکوي ، فقراء پکې کم وو ، نو څه به دوئ ته او نور به بیا بل ښار ته یوسي . حنابله وایې چې که چیرته بیت المال کې ددوو حقوقو ګنجایش نه و ، نو هغه ته دې ترې ورکړي ، کوم چې په بیت المال پوروي ، لکه دعسکرو معاشات یا نفقات ، اوددوئ وسلې او نور تجهیزات او دا نور مصالح دې وروسته کړي لکه د(ابو یعلی په احکام السلطانیه) کې داسې راغلې :

يَرَى الْمَالِكِيَّةُ وَالشَّافِعِيَّةُ أَنَّهُ يُنْدَبُ الْبَدْءُ بِالصَّرْفِ لآلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِينَ...... . ثُمَّ بَعْدَ ذَلِكَ يَجِبُ الْبَدْءُ بِمَصَالِحِ أَهْلِ الْبَلَدِ الَّذِينَ جُمِعَ مِنْهُمُ الْمَالُ ، كَبِنَاءِ مَسَاجِدِهِمْ وَعِمَارَةِ ثُغُورِهِمْ...... الأحكام السلطانية لأبي يعلى ص ۲۳۷ ) .

